تحریری کورس مناظرہ

# تشریحات النابغة

في

# حل المسائل المختلفة

من ملفوظات

شیخ الاسلام سلطان المناظرین نابغۃ العصر شیخ القرآن والحدیث شہید ابن شہید

ابو العزیز غلام حضرت غلام الحنفی شہید عرف نابغہ حفظہ اللہ

محرر و مرتب

سید محمد ثواب

ابن سید اکاخیل باچا صاحب

اولہ حصہ

ناشر

مدرسہ حدیقۃ الاحناف

# مسئلة الوسيلة :

الحمد لله وحده والصلاة والسلام على من لا نبي بعده ولا رسول بعده وهو خاتم النبيين.

أما بعد ! فأعوذ بالله من الشيطن الرجيم بسم الله الرحمن الرحيم قال الله تبارك وتعالى : يا ايها الذين آمنوا اتقوا الله وابتغوا اليه الوسيلة . (پاره ٤ سورة مائدة آيت : ٣٥).

يا خير من دُفنت بالقاع أعظمه ❁ طاب من طيبهن القاع والأكم

نفسي الفداء لروضٍ أنت ساكنه ❁ فيه العفاف وفيه الجود والكرم

دا اوس مسئله چې درس کولې شي زمونږ د درس مناظره نه مسئله د توسل ده بالذوات الفاضله او دا مشتمله کړځوو په چند مباحثو باندې :

مبحث اول : معنى لغوي د وسيلې سره د بيان د ذکر د انواعو د توسل نه او تعيين د توسل متنازع فيه د غير متنازع فيه نه .

مبحث ثاني : استدلالات په دغه توسل بالذوات الفاضله متنازع فيها کې د قرآن کريم د نصوصو نه سره د بيان د ذکر داقوالو د مفسرينو تائيداً .

مبحث ثالث : استدلالات په توسل باندې په آحاديثو مبارکوو متعددو نه سره د ذکر الايرادات على السند مع الجوابات .

مبحث رابع : توسل عند الفقهاء الحنفيين حنفي علماء د توسل په رابطه څه رايه لري.

مبحث خامس : ذکر د اقوالو د فقهاو مالکينو .

مبحث سادس : ذکر د اقوالو د فقهاء شافعينو .

مبحث سابع : ذکر د اقوالو د فقهاء حنابلوو .

مبحث ثامن : ذکر د اقوالو د عامة المفسرين والمحدثين .

مبحث تاسع : د زمن معصر د اهل حديثو او د اهلسنت والجماعة د مخالفينو د سر کردوو فتواى ګاني په متعلق ددغه توسل .

مبحث عاشر : أقوال عامة المحدثين .

نو بيا به تاسو خپله سوچ کوي چې دوي توسل ته شرک وايي حرام بدعت وايي او وسيله من وسائل الشرك ګڼي او مونږ د دغه تفصيل د مباحثو کې به تاسو ته په خپله د فقهاء د هر مذهب اقوال معلوم شي د مفسرينو محققينو محدثينو اقوال به هم معلوم شي نصوص د احاديثو او د آيات کريمه نه استدلالات به معلوم شي نو په آخره کې بيا تعصب د اهل حديثو به ښکاره شي چې دوي په دغه جزيه کې د توسل بالذوات الفاضلة کې چې قائلين د شرک يا وسيله من وسائل الشرك دي څومره د تعصب نه کار اخلي او په آخر کې به د دوي فتوى نقليږي چې دوي توسل ته څه شي وايي.

## المبحث الأول في الوسيلة :

## تحقيق لغوي د وسيلې سره د بيان د انواعو د توسل او تعيين د توسل متنازع د غير متنازع نه :

وسيله لغتاً معنين لري کله راځي وسيله په معنى د قربت باندې نزديکت ته وسيله وايي نزديک جستن، نزديکي لټول يا نفس قربت نزديکي دا وسيله چې په معنى د قربت سره ده کوم چې په حديث د صحيح مسلم جلد اول صفحه ۲۸۸ کې د نبي عليه السلام ارشاد دي:

اذا سمعتم المؤذن فقولوا مثل ما يقول ثم صلوا علي فانه من صلى علي صلاة صلى الله عليه بها عشراً ثم سلوا الله لي الوسيلة.

په دغه ځای کې چې کوم لفظ د وسيلې ذکر دي نو دا ربط لري معنى لغوي کې هغه وسيلې سره چې کوم په معنى د قربت سره دي دلته مراد د وسيلې نه المنزلة والدرجة والقربة عند الملك، د بادشاه سره يوه نزدې رتبه نو دغه وسيله يو خاص مقام دي قريب مع الله تعالى نه په قربت حسي مکاني سره بلکې په قربت معنوي سره نو دغه مقام تولو انسانانو عبادو کې يو شخص ته ملاويږي نبي عليه السلام فرمايلي هغه زه يمه تاسو زما د پاره د وسيلې مقام دعاء وغواړي نو اصلاً وسيله لغتاً په معنى د قربت وه او اطلاق يې په دغه وسيلې مقام باندې ځکه شوې دي چې هغه هم يو مقام قريب دي مع الله تعالى نو دا وسيله تجيء بمعنى المنزلة

والدرجة والقربة عند الملك خو لغتاً د قربت په معنی سره شو ، او کله کله وسیله راځي په معنی د توصل الی الشيء بالرغبة ، یو شي ته ځان رسول په رغبت سره .

وهي اخص من الوصیلة لتضمنها معنی الرغبة .

نو یو وصیله په (ص) شوه بله وسیله په (س) سره شوه دغه دویمه معنی چې واخلو چې توصل الی الشيء نو بیا وصیله په (ص) او وسیله په (س) تقریباً قریب المعنی شو خو فرق یې په خصوص او عموم کې شو .

وسیله په (س) توصل الی الشيء بالرغبة ، او وصیله په (ص) چې کوم دي هغه نفس توصل الی الشيء که هغه بالرغبة وي که بغیر رغبت وي نو تخصیص نعمیم کې یې فرق وشو :

والواسل الراغب الی الله تعالی .

نو واصل په دغه معنی سره چې توصل الی الشيء بالرغبة دی په معنی د راغب الی الله سره شو .

## دریمه معنی د وسیلې :

هغه دا چې صرف مصدر وانخیستل شي بلکه دا اسم آله وګرځیږي په معنی د مایتوصل به الی الغیر سره ، هغه څیز او آله چې په هغې باندې سړي نزدې کیږي غیر ته .

وواضح ان الوسیلة بالمعنیین الاولین غیر مرادین في بحثنا هذا .

وسیله په معنی د توسل الی الشيء بالرغبة سره یا د نفس قربت سره د امتناع فیها نه ده ، مونږ دغه وسیله کې نن بحث نه کوو چې په معنی د قربت سره ده او په دغه وسیله کې چې په معنی د توصل الی الشيء بمعنی الرغبة دا زیر بحث نه ده .

وسیله په دریمه معنی چې اسم آله واخیستلې شي په معنی د مایتوصل به الی الغیر سره هغه څیز چې په هغې سره غیر ته سړي نزدې کیږي دغه وسیله کې اختلاف دي چې هغه څیز چې په هغې سړي اله العالمین ته نزدې کیږي هغه یو اخې اعمال دي او که اعمال او معیت د

ذواتو د دواړو دي دا مسئله اختلافي ده منكرين د توسل بالذوات الفاضلة چې په هر نوم يادېږي هغوي وايي چې : مايتوصل به الى الغير ، فقط اعمال دي هغه څيز چې سړي پرې خالق ته نزدې كيږي صرف اعمال دي ، او مثبتين د توسل چې مونږ يو ، نو مونږ وايو چې نزديكت الله ته لكه څنګه چې په اعمالو راتلې شي نو دغه شان په معيت د صلحاء باندې هم او په صحبت د اولياء انبياء عَلَيۡهِمُ ٱلسَّلَامُ باندې هم راتلې شي .

او دا يو واضح حقيقت دي ګوره په غير صحابي كې كه جزي عمل د صحابي نه زيات شي خو مقام يې په صحابي نه شي اوچتيدلې دا ځكه چې كه يو اځې آله د تقرب عمل وګرځيږي نو كيدې شي چې يو شخص په عمل جزي كې فوقيت حاصل كړي ، په يو صحابي باندې مثلاً پنځوس كاله روژه ونيسي دا به ثابت په يو عمل د صحابي كې نه وي خو سره د دومره اعمالو نه دده مقام په صحابي نه شي اوچتيدې ولې ځكه صحابي د هغه عمل قليل سره معيت د يو ذات لري چې محمد مصطفى صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ دي او دا غير صحابي ته دغه معيت د ذات نه دي حاصل .

نو آله د قرب الى الله كه محض عمل شي او معيت د ذات نه شي نو په كار داده چې هر عمل كوونكي زائد عمل والا هغه فوق والي ولري په درجه كې په هغه چا باندې چاچې د معيت د ذواتو كړې دي نو خبره خو يې باطله ده چې دوي آله د قرب الى الله يواځې عمل ګرځوي نه آله د قرب اعمال هم دي او آله د قرب الى الله معيت د ذواتو هم دي نو مثبتين ذات آله د قرب الى الله ګرځوي او منكرين ذوات آلات د قرب الى الله نه ګرځوي نور تاسې خپله هم سوچ كولې شي چې ددوي خبره څومره وزن لري او څه اهميت لري چې ذات معيت د نصوصو نه څنګه دي نور تاسو قضاوت وكړي او ما وضاحت په خپله رساله كې كړې دي .

فالوسيلة بمعنى الثالث اى مايتوصل به الى الغير خاص بالعمل الصالح عند المنكرين وعام عند المثبتين فعندهم كما ان العمل الصالح وسيلة وآلة الى قرب الله تعالى كذا معية الصلحاء ومحبتهم وسائل من وسائل قرب الله تعالى قال الله تعالى : ﴿إِنَّ رَحۡمَتَ ٱللَّهِ قَرِيبٌ مِّنَ ٱلۡمُحۡسِنِينَ﴾ . ( پاره ۸ سورة اعراف آيت : ٥٤ ) . وقال الله تعالى : ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱتَّقُواْ ٱللَّهَ وَكُونُواْ مَعَ ٱلصَّٰدِقِينَ﴾ ( پاره ۱۱ سورة توبة آيت : ۱۱۹ ) .

اکثر شواهد ما په دې پیش کړي چې معیت د صلحاو دا آله د قرب الی الله وي .

فعند المثبتین الوسیلة بالمعنی الثالث ما یتقرب به الی الغیر دي .

دلته مسئله نزاعي دا شوه وسیله په معنی د اسم آلې : ما یتوصل به الی الغیر کې نزاع راغله چې صرف عمل دي او که عمل او ذات دواړه دي نو په نزد د مثبتینو باندې معنی ثالث عامْ لغتاً وشرعاً مونږ چې مثبتین د توسل یو مونږ وایو چې دا وسیله په معنی د مایتوصل به الی الغیر سره دا ذات او عمل دواړو ته عامه ده هم لغتاً هم شرعاً شریعت کې هم چې مونږ ګورو وسیله ذواتو کې مستعمله ده او په لغاتو کې هم وسیله ذات او حرمت کې مستعمله ده دلائل پرې دا دي :

لسان العرب جلد ۱۱ صفحه ۷۲۴ کې د وسیلې معنی کوي ماده وسل په دې ماده باندې خبره کوي :

الوسیلة المنزلة عند الملك والوسیلة الدرجة والوسیلة القربة .

او س دا وَسَلَ په باب د تفعیل کې مستعمل کړه : ووسل فلان الی الله وسیلةً ، وسیله جوړه کړه فلاني خدای تعالی ته وسیله ، ای اذا عمل عملاً تقرب به الیه یو عمل یې کړې وي په هغې خدای تعالی ته ځان نزدې کړي .

همدغه وسیله په باب د تفعل کې مستعمل کړه : وتوسل الیه بوسیلة ، معنی څه ده اذا تقرب الیه بعمل وتوسل الیه بکذا تقرب الیه بحرمة آصرة تعطفه علیه .

ځان یې نزدې کړ خالق ته په یو حرمت سره بحرمة فلان بوسیلة فلان بجاه فلان دا ټول الفاظ د توسل بالذوات الفاضلة دي نو اهل لغت دا وسیله په باب د تفعل کې عامه یې توسل الیه بوسیلة تقرب الیه بعمل وتوسل الیه بکذا ای تقرب الیه بحرمة ، هغه ته یې ځان په یو حرمت سره نزدې کړ آصرةٍ تعطفه علیه ، داسې یو حرمت چې هغه مهربان ګرځوي متوسل به الیه دي متوسل سره چا باندې متوسل الیه متوسل به خو هغه ذات شو متوسل ته شوې الیه الله پاک شو .

تقرب اليه بحرمة ځان يې نژدې کړ ورته په يو حرمت سره هسې حرمت تعطف چې دغه حرمت مهربان کړځوي ۀ متوسل اليه لره الٰه العالمين لره عليه په ده باندې نو داسې حرمت د چا پيش کړي چې د حرمت په وجه باندې د حرمت د ذات په وجه خالق په تا مهربانه شي نو اهل لغتو وسيله عامه کړه هم عمل لره هم حرمت لره .

دارنګې تهذيب اللغة جلد ۴ صفحه ۲۲۰ کې ليکي :

والوسيلة الوصلة والقربى وجمعها الوسائل قال الله تعالى اولئك الذين يدعون يبتغون الى ربهم الوسيلة ايهم اقرب . ويقال توسل فلان إلى فلان بوسيلة أي تسبب بسبب .

يو سبب يې ورته جوړ کړ وتقرب اليه بحرمة آصرة تعطف عليه .

او ځان يې ورته نژدې کړ په يو حرمت باندې چې هغه حرمت مهربان کوي متوسل اليه په دې متوسل باندې .

دارنګې معجم الوسيط جلد ۲ صفحه ۹۸۸ په ماده د وسل کې ذکر کوي : فلان الى الله بالعمل يَسِلُ وسلا رغب وتقرب . وسل فلان الى الله تعالى اى عمل عملاً تقرب به اليه .

## انواع د توسل :

څه متنازع فيه دي څه غير متنازع فيه دي کله توسل الى الله تعالى راځي بالعمل الصالح دا جائز دي په اتفاق د مثبتينو او منکرينو باندې نو دلائلو ته ډير ضرورت نشته اشارتاً به دومره ووايمه واستعينوا بالصبر والصلوة استعانة من الله طلب کړي بالصبر بسبب الصبر وبالصلوة بسبب الصلوة نو باء سببيه ده وسيله کې صبر او صلوة ورته پيش کړي او استعانت وغواړي نو دا دليل د جواز د توسل دي په عمل صالح باندې چې صلوة او صبر دي .

او يا د بخاري شريف معروف روايت دي چې کوم دري نفر په غره کې په غار کې بند شوې وه او هر يوه خپل عمل وسيله کې پيش کړې وه او بيا هغوي له غار نه بهر شوې وه دا معروف حديث دي چونکې دا مسئله اتفاقي ده نو په ډيرو شواهدو کې ځان نه ستړې کوو .

## دويمه وسيله ده بالذات فعلاً :

وسيله ذات سره چې وسيله فعلي ورته ويلې شي هغه طلب الدعاء من الحي الصالح ، د يو نيک ژوندي سړي نه طلب د دعاء دا مسئله اتفاقي ده بيننا وبين الخصم ، ژوندي سړي نه طلب د دعاء دا مسئله اتفاقي ده بيننا وبين الخصم ، هغوي يې هم جائز ګڼي موږ يې هم جائز ګڼو شواهدو ته ضرورت نشته دي او عظيم شاهد په دې باندې د قرآن عظيم الشان هغه نصوص دي چې قوميان د موسی عليه السلام راتلل موسی عليه السلام ته چې يا موسی ادع لنا ، موږ ته دعاء وغواړه .

او يا د بخاري وغيره د کتب د استسقاء بابونه چې صحابه کرام رحمة للعالمين ته د استسقاء د دعاء لپاره پيشکش کړې وه نو دا وسيله شوه په ذات باندې .

وسيله فعلي چې هغه ژوندي ده صالح ده او طلب د دعاء ترې کوي مشران او اکابر منکرينو د توسل هم په کتبو خپلو کې دې ته جائز ويلې دي او بنکته کشران په پاکستان کې کوم عوام جهال ددوي چې دي هغوي د خپلو مشرانو د قول نه دې کې خبر نه دي هغوي داسې عقيده جوړه کړې چې دا به هم جائز نه وي ځکه چې کله هم د منکر د توسل نه چې تپوس وشي چې راځه دلته د يو شيخ صالح ده دعاء به درته وکړي نو ددې جاهل جواب دا وي چې الله ماته د مرئ د رګ نه نزدې دي د بل چا دعاء ته څه ضرورت دي .

## دريم توسل دې په ذات باندې : توسل قولي :

دا دريم قسم توسل قسمين لري : توسل په ذات باندې توسل قولي د هغه ذات حي ژوندې وي او دويم توسل په ذات باندې توسل قولي چې هغه وفات وي دنيا نه تللې وي نو دا دريم قسم توسل چې توسل قولي بالذات دي دا اختلافي دي ددې نه انکار منکرين کوي که هغه ذات ژوندي وي هم ترې منکر دي او که هغه ذات وفات وي هم ترې نه منکر دي توسل قولي نه .

توسل قولي چا ته وايي : توسل باسم الصالح ته ويلې شي چې نوم يې واخلي يا الله د فلاني په وسيلې باندې زما دا مشکل پوره کړي نو دا توسل قولي شو .

# المبحث الثاني : تحقيق الوسيلة في ضوء القرآن الكريم مع ذكر أقوال المفسرين تائيداً :

﴿أُولَٰئِكَ الَّذِينَ يَدْعُونَ يَبْتَغُونَ إِلَىٰ رَبِّهِمُ الْوَسِيلَةَ أَيُّهُمْ أَقْرَبُ وَيَرْجُونَ رَحْمَتَهُ وَيَخَافُونَ عَذَابَهُ إِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ كَانَ مَحْذُورًا﴾ ( سورة الأسراء آیت : ٥٧) .

نو په اتفاق د مفسرینو عمدوو سره مشار الیه په اولئک کې عابدین نه دي معبودین دي او معبودینو کې هم بتان نه دي مراد په معبودینو کې صلحاء مراد دي ملائکه مؤمن الجن عزیر عَلَيْهِ السَّلَام عیسی عَلَيْهِ السَّلَام دا چې مونږ قول وکړ چې مشار الیه په اولئك کې معبودین دي عابدین نه دي دلیل په دې باندې تفسیر در المنثور جلد ٦ صفحه ٢٩١ د عبدالله ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قول په تعیین د مشار الیه کې څه دي او د عبد الله ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قول څه دي په تعیین د مشار الیه د اولئک کې :

اخرج عبدالرزاق والفریابي وسعید ابن المنثور وابن ابي شيبه والبخاري والنسائي وابن جریر بن المنذر وابن ابي حاتم والطبراني والحاكم وابن المردوية وابونعيم في دلائل.

دې تولو دا ذکر کړي .

عن ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ في قوله : ﴿قُلِ ادْعُوا الَّذِينَ زَعَمْتُم مِّن دُونِهِ فَلَا يَمْلِكُونَ كَشْفَ الضُّرِّ عَنكُمْ وَلَا تَحْوِيلًا﴾ ( پاره ١٥ سورة الأسراء آیت : ٥٦) .

قال : كان نفر من الإنس يعبدون نفراً من الجن . انسانانو کې څه خلکو د پیریانو عبادت کوه .

فأسلم النفر من الجن وتمسك الإنسيون بعبادتهم . پیریانو ایمان راوړو انسانان همغه شان په عبادت کې مصروف پاتې شول . نو آیت نازل شو :

﴿أُولَٰئِكَ الَّذِينَ يَدْعُونَ يَبْتَغُونَ إِلَىٰ رَبِّهِمُ الْوَسِيلَةَ أَيُّهُمْ أَقْرَبُ وَيَرْجُونَ رَحْمَتَهُ وَيَخَافُونَ عَذَابَهُ إِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ كَانَ مَحْذُورًا﴾ ( سورة الأسراء آیت : ٥٧) .

نو دا اولئك کې اشاره هغه مؤمنانو جنتیانو ته ده .

وأخرج ابن جرير وابن أبي حاتم وابن المردوية عن ابن عباس رضي الله عنهما في الآية قال كان أهل الشرك يعبدون الملائكة والمسيح وعزيراً.

ددوي عبادت یې کوه نو اولئک کې اشاره دوي ته ده .

نچوړ د دواړو قولینو دا چې اولئك کې مشار الیه عابدین نه دي معبودین دي بیا معبودینو کې احجار بتان دا نه دي صلحاء دي ملائک دي مؤمن الجن دي عزیر علیه السلام عیسی علیه السلام دوي مراد دي .

نو چې هر کله مونږ دا وخودله د عمده تفاسیرو نه چې مشار الیه معبودین دي عابدین نه دي نو اوس ترکیب او ترجمه یې دا شوه چې : اولئك الذين يدعون ، دا اولئك موصوف که الذین موصول یدعون صله عائد مقدر کړه موصول مع الصله دا صفت د اولئک موصوف سره د صفت نه دا مبتداء شوه خبر یې څه شي شو اولئك يبتغون :وي چې دې لټوي یبتغون یې خبر شو الی ربهم الوسیلة رب خپل ته لټوي وسیلې څوک یې لټوي عزیر علیه السلام وسیله نیسي عیسی علیه السلام وسیله نیسي ملائک وسیله نیسي مؤمن الجن وسیله نیسي مشار الیه څوک دي معبودین دي دوي ټول وسیلې نیسي خپل رب ته چا باندې وسیله نیسي .

ایهم اقرب په ایهم اقرب کې تاویلین دي یو تاویل دا چې ایهم اقرب په محل د رفع کې شي یعني جمله په محل د رفع کې شي دا به بدل شي له ضمیر د یبتغون نه چې فاعل دي په دې تاویل باندې وسیله ثابت شوه خو متوسل به معلوم نه شو .

معنی دا شوه دوي وسیله نیسي څوک وسیله نیسي أيهم اقرب کوم چې اقرب الی الله دي هغه هم وسیله نیسي په چا باندې وسیله نیسي دا پته ونه لږیده متوسل به معلوم نه شو .

دا ثابته شوه چې اقرب الی الله وسیله نیسي ډارک سوالونه ، نه کوي وسیلې نیسي بدون د وسیلې دعاء نه غواړي دعاء کوي خو وسیلې سره یې کوي وسیله کې څوک پیش کوي متوسل به متعین نه شو په دې تاویل .

دویم تاویل دا چې أيهم أقرب دا منصوب شي دا چې منصوب شي نو دوه تقدیره

جو رېږي يا منصوب کړه بنزع الخافض دا يې آسانه طريقه ده جار مقدر کړه يبتغون الى ربهم الوسيلة ايهم اقرب ، بأيهم أقرب دوي وسيله نيسي په چا باندې کوم يو پيغمبر کوم يو عبد چې اقرب الى الله دي نو دا نور هغه وسيله کې پيش کوي نو دلته متوسل به معلوم شو چې په ذات وسيلې نيسي بأيهم أقرب کوم چې أقرب الى الله دي په هغه وسيله نيسي .

يا يې منصوب کړه نو عامل مقدر کړه فينظرون دوي سوچ کوي أيهم أقرب چې کوم أقرب إلى الله دي فيتوسلون به نو وسيله پرې نيسي .

نو د أيهم أقرب په محل د نصب کې دوه تاويله شول يا يې منصوب کړه بنزع الخافض بأيهم أقرب په ځای ددې چې فعل عام ورته راوباسي ينظرون أيهم أقرب فيتوسلون به دا څو مره بعيده ده معنى خو هماغه شوه معنى د بأيهم أقرب او د ينظرون أيهم أقرب فيتوسلون به يوه ده خو هغوي ورته فعل مقدر کړ دا يې ورته مفعول کړ او موږ منصوب بنزع الخافض په لنډه باندې .

دا دواړه تاويله چې ما ذکر کړل دا تفسير زاد المسير جلد ۴ صفحه ۱۷۲ کې ذکر کړي دي فرمايي :

أيهم أقرب في قوله تعالى قولان .

دا اقوال چا ذکر کړي :

ذكرهما الزجاج أحدهما أن يكون أيهم مرفوعاً بالابتداء وخبره أقرب ويكون المعنى أيهم أقرب إليه فيتوسلون إلى الله به . کوم چې أقرب إلى الله بس دوي وسيله نيسي إلى الله به په دغه أقرب إلى الله باندې .

دويمه دا چې شي :

أيهم أقرب بدل من الواو في يبتغون فيكون المعنى يبتغي أيهم هو أقرب الوسيلة إلى الله .

لټوي کوم چې أقرب وسيله إلى الله ده أي يتقرب إليه بالعمل الصالح ، په عمل صالح وسيله نيسي نو رد په توسل بالذات نه راځي چې عمل باندې نيسي په ذات يې اوس نه شي

نيولې نه په هغې باندې هم راتلې شي ځکه هغه اول تاويل کې چې بدل د واو نه شي متوسل به متعين نه ده چې نه ده نو عمل هم دي ذات هم دي خو دلته پرې دال نه دي چې کوم يو مراد دي دوي وسيله نيسي څوک نيسي أقرب إلى الله وسيله نيسي په چا يې نيسي پته نه لږي نو صاحب د زاد المسير عمل را واخيسته نو رد خو په ذات نه کوي چې په ذات يې نه شي نيولې هغه خو به ته د نصوصو نه لغتونه ګوري چې وسيله عامه دواړو ته ده او که نه ده نو زاد المسير دغه عبارت د أيهم أقرب دواړه رفعه کړه خو يا يې رفع کړه بالبدلية د ضمير د يبتغون نه، او يا يې رفع کړه بالابتداء او معنى يې دا وکړه أقرب إليهم فيتوسلون إلى الله به .

او دغه کې نور مفسرين بيا دا عبارت را آخلي چې منصوب يې کړه :

فينظرون أيهم أقرب فيتوسلون به .

نو اوس د آيت ترکيب او ترجمه وشوه .

طريقې د استدلال ته يې متوجه شه که وکتلې شي نو وسيله خپله ښکاريږي : اى هغه څوک چې عبادت د ملائکو کوي ، اى عيسويانو يهودانو ، اى عابدينو د مؤمن الجن دي ملائکو عيسى عليه السلام عزير عليه السلام او مؤمن الجن چې معبودين ستاسې دي دوي ته معبودان مه وايي ، ځکه معبود هغه څوک وي چې هغه خپل مشکلات خپله پوره کوي د هغه بل چا ته ضرورت نه وي .

دا تاسو چې چا ته معبود وايي دوي ته چې مشکل پيدا شي نو خپله يې نه شي حل کولې هغه مشکل بيا په الله حل کوي بيا يې په الله داسې خلک حل کوي چې هغه ذات نه يې ډارک نه غواړي .

بل ورته وسيله کې پيش کوي نو هغه څوک چې خپل مشکل په خپله نه شي حل کولې بلکې د بل نه يې غواړي بيا د بل نه يې هم په داسې عاجزې غواړي چې يو بل ذات أقرب ورته پيش کوي نو ولې يې معبودين ګڼي دا د آيت نچوړ دي .

اولئك دغه عيسى عليه السلام ، عزير عليه السلام ، مؤمن الجن ملائک دا معبودين مه ګڼي .

الذين هغه معبودين ستاسې يدعون چې مشرکين عبادت د هغوي کوي نو دغه معبودين د دوي چې دي يبتغون لټوي رب خپل لره وسيله دوي کې کوم يوه وسيله لټوي

أيهم أقرب كوم چې أقرب الى الله دي هغه هم وسيله نيسي دا هغه اول تاويل شو چې بدل شو.
يا أيهم أقرب بأيهم اقرب كوم چې أقرب إلى الله دي په هغه وسيله نيسي يا فينظرون
گوري أيهم أقرب چې كوم أقرب إلى الله دي فيتوسلون به نو وسيله پرې نيسي.
نو دا وروستنې تاويل چې فينظرون دا دليل شو په توسل بالذوات الفاضله باندې د
انبياء ملائک عليهم السلام دوي گوري أيهم أقرب چې كوم يو أقرب دي فيتوسلون به نو وسيله
پرې نيسي په دې صورت کې أيهم أقرب ضمير د هم چې ده ضمير د عقلاء دي راجع كول يې
عمل ته صحيح نه شو عمل ته يې چې راجع كوي اعمال چې اخلي جمع بتأويل الجماعة ايها
اقرب په كار دي او په قرآن عظيم کې أيهم أقرب دي نو ضمير عقلاء ته راجع ده ذواتو ته نو كه
چيرته اعمالو ته راجع واي ايها أقرب په كار وه يا ايهن اقرب په كار وه ايهم اقرب نه وه په كار
اعمالو ته ضمير د هم نه راجع كيږي دا ضمير د عقلاء دي نو ينظرون أيهم كوم دي د ذواتو د
انبياء چې اقرب إلى الله دي فيتوسلون به.
نو معلومه شوه د آيت نه چې وسيله په ذات باندې د عيسى عليه السلام كار وه د عزير
عليه السلام كار وه د ملائكو كار وه.
نو ځوک چې ورته شرک وايي عيسى عليه السلام عزير عليه السلام ملائک شرک نه كوي كه
څوک ورته بدعت وايي هغوي بدعتيان نه وه.
نو دا دليل ددې شو چې وسيله د انبياء عمل دي او وسيله په ذات د ملائكو عمل دي،
مه ورته شرک وايه، مه ورته حرام بدعت وايه.
نو مقابل جانب به څه جواب كوي نو جواب نشته مگر له ځان نه يو تفسير كوي، د
جمهورو تفسير پريږدي.
اولئك کې مونږ مشار اليه څوک جوړ كړل عيسى عليه السلام عزير عليه السلام ملائک او
مؤمن الجن په قول د عبد الله بن مسعود، عبد الله ابن عباس رضي الله عنهما.
دوي وايي نه اولئك کې اشاره عابدينو ته ده معبودينو ته نه ده دوي وايي نو چې اشاره

يې عابدينو ته کړه ټول کار يې خراب کړ ځکه غلط تاويل يې وکړو په دغه تاويل کې په اسلافو کې د هيڅا قول هم نشته هيڅوک به پيدا نه کړي چې اولئک يې عابدينو ته راجع کړې وي تفسير قرطبي يو قول د قيل راخيستې خو بيرته يې پرې رد کړي خپله پرې رد کوي چې دا باطل تاويل دي .

نو د هغوي معنی دا شوه : اولئك دا عابدين چې يهوديان عيسويان دي مشرکين دي يبتغون الى ربهم الوسيلة ، رب خپل ته وسيلې نيسي چا باندې وسيله نيسي أيهم أقرب چې أقرب إلى الله دي نو تا ته وايي د وسيلې نه ځان ساته ځکه دا د يهودي عمل دي د عيسوي مشرک عمل دي چې اولئك عابد ته راجع شي خو کار وران شو يبتغون خو د اولئك خبر دي نو اولئك دا عابدين چې دي چې مشرکين دي دوي وسيله نيسي .

نو فرق کوم ځاى کې راغې جمهورو سلفو په اولئك کې مشار اليه معبودين واخيست او دغه منکرينو مشار اليه د اولئك عابدين واخيست دغه ځاى کې فرق راولي نور ښکته تفسير کې څه نه وايي .

راځئ د دوي تفسير مقايسه پرتله کړو د اسلافو له تفسير سره چې فرق دوي کې ده که هغوي کې ده کوم صحيح تفسير دي .

﴿وَيَرْجُونَ رَحْمَتَهُ وَيَخَافُونَ عَذَابَهُ إِنَّ عَذَابَ رَبِّكَ كَانَ مَحْذُورًا﴾ .

دا يرجون عطف دي په يبتغون باندې .

يبتغون خو خبر وه د پاره د اولئك د دوي معنی اوس دا شوه : اولئك دا عابدين يهوديان ، عيسويان او مشرکين رب کريم ته وسيلې نيسي بأيهم أقرب .

اولئك دا يهوديان ، عيسويان او مشرکين يرجون رحمة الله د الله د رحمت اميد ونه ساتي ، ويخافون عذابه د عذاب نه يې يريږي .

فساد کوم ځاى نه پيدا شو اولئك مشار اليه اسلافو معبودين ښودلې وه دوي ترې عابدين جوړ کړل او چې کله قران عظيم کې څوک تفسير بالرأيه کوي د هغوي اولين مشکل

به داوي چې د آيت به نه لړي يا به لانجه داوي چې دغه آيت به له بل آيت سره په ټکر کې وي.
يا به ايت مخالف د حديثو نه وي يا به ايت مخالف وي د فقهاء نه او دا مخالفتونه نشته داد هغه چا ترجمه کې راځي چې تفسير بالرأيه کوي د اسلافو قول نه اخلي د خپل ځان نه ترجمه وکړي نو ګوره د اسلافو تفسير ته:

اولئك دا معبودين عزير عَلَيْهِ السَّلَامُ، عيسى عَلَيْهِ السَّلَامُ معبود مه ګڼي ځکه د مشکل په وخت کې دوي رب كريم ته وسيلي نيسي چا باندې وسيلي نيسي أيهم أقرب دوي ته معبودين مه وايي ځکه دا معبودين ستاسي يرجون رحمته د الله د رحمت اميدونه ساتي ويخافون عذابه د الله د عذاب نه ويريږي که دا معبودين واي د خالق نه به نه ويريدې که دا معبودين واي د بل د رحمت اميدونه به يې نه ساتلې نو د اسلافو ترجمه چې معبودين يې واخيستل مسئله جوړه شوه او چې معبودين دي واخيستل ترې ثابتيږي چې وسيله نيول د عزير عَلَيْهِ السَّلَامُ، عيسى عَلَيْهِ السَّلَامُ ملائكو کار دي.

او که عابدين دي واخيستل نو ترې ثابتيږي چې وسيله نيول د يهودي عيسوي او د مشرک کار دي دومره لوي فرق کوي دا ما چې کومه حواله د زاد المسير تاسو ته درکړه چې دا تاويلين يې ذکر کړي دي چې يو تاويل باندې دا منصوب شي يا مرفوع شي خو معنى يې داشي چې ينظرون أيهم أقرب فيتوسلون به دا يو اځې زاد المسير نه، درمنثور نه بلکې متعدد تفاسير په دې باندې قائل دي تفسير بغوي جلد ۵ صفحه ۱۰۱۰ ذکر کوي:

أيهم أقرب معناه ينظرون أيهم أقرب إلى الله فيتوسلون به.

تفسير بحر محيط جلد ۷ صفحه ۳۶۳ د دې عبارت هم دا دی:

معناه ينظرون أيهم أقرب إلى الله فيتوسلون به.

دا رنګې تفسير اللباب د ابن عادل جلد ۱۰ صفحه ۳۲۹ د هغې عبارت هم په دې دويم تاويل کې دا دی:

والمعنى ان ينظرون أيهم أقرب إلى الله فيتوسلون به.

تفسير خازن جلد ۴ صفحه ۲۶۳:

قوله تعالى: أيهم أقرب معناه ينظرون أيهم أقرب الى الله فيتوسلون به .
معالم تنزيل جلد ۴ صفحه ۴۲۷:
قوله تعالى أيهم أقرب إلى الله معناه ينظرون أيهم أقرب الى الله فيتوسلون به .
ددې تولو دا قول دی نو أيهم أقرب مبتداء او خبر واخلي دا يې محل قريب واخيست اصلاً که محمل بعيد ته که لاړ شي نو ينظرون ايهم اقرب بيا به د نصب شي او يا ايهم اقرب مبتداء او خبر که په دې هم مرفوع شو او يا يې محل د رفع بناء بر بدليت که د ضمير د يبتغون نه چې فاعل دی .

## دويم آيت :

سورة بقرة آيت : ۸۹ اهل کتاب د مدينې منورې يهوديان مخکې له بعثت د نبي اکرم ﷺ نه د مشرکينو غير اهل کتابو سره به يې جګړه کې وسيله نيوله بذات المصطفى ﷺ کله چې نبي اکرم ﷺ راغې دوي ته بيا يې عناداً انکار وکوه .
قرآن عظيم د دوي د سابقه حال مدحه بيانوي او په دغه حالت وروستنې باندې چې انکار کوي رد کوي ذم يې کوي چې تاسو خو هغه خلک وي چې تاسو دغه نبي عليه السلام به مو ماته وسيله کې پيش کوه د مشکل او جنګ په وخت کې په مقابل د مشرکينو کې .
کله چې اوس دې درغي تاسو ته نو انکار ترې کوي .
﴿وَلَمَّا جَاءَهُمْ كِتَابٌ مِنْ عِنْدِ اللهِ﴾.
هر کله چې راغې دې يهودو ته کتاب من عند الله هسې کتاب چې مصدق لما معهم وه په اصولو کې حال دا وه وه دوي من قبل اى من قبل مجيء القرآن او من قبل مجيء محمد ﷺ ، د نبي عليه السلام د بعثت نه وړاندې وه دوي .
يستفتحون طلب د فتحې به يې کوه من الله تعالى على الذين كفروا ، مقابل د مشرکينو کې په چا باندې به يې طلب د فتحې کولو په نبي عليه السلام باندې شان نزول نه پته لږي .
فلما جاءهم : هر کله چې راغې دوي ته څوک راغې ما هغه پيغمبر عليه السلام ، عرفوا چې

دوي بنه پيژندو كفروا ، نو دوي كفر وكړ به فلعنة الله على الكافرين په دې حالت يې ذم شو .

ماعرفوا : موصول مع الصله فاعل د جاء شو دا ټول شرط شو كفروا به جزاء شوه .

د اخندانو ترجمه مه كوي فلما جاءهم هر كله چې راغې دوي ته نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ، ما عرفوا نو ونه پيژنده دوي هغه لره دوي داسې ترجمه كوي ما نافيه كړي نو دا آيت بيا مقابل واقع شي د هغه آيت سره يعرفونه كما يعرفون ابناءهم د بچو په شان يې پيژندي او دوي وايي ما عرفوا ، وي نه پيژنده .

نه ما نافيه نه ذي ما دلته موصوله دي دا فاعل د جاء دي جاء هم ما عرفوا راغې دوي ته هغه پيغمبر چې دوي پيژنده نو دوي كفروا به عنادا .

نو چې كوم تفسير كې هم ددې آيت كريمه شان نزول وګوري نو د يهوديانو استفتاحي دعاء به ذكر كوي چې دوي استفتاح من الله على الذين كفروا په كومو الفاظو ؤويلي ، نو الفاظ د دعاء ددوي دا وه :

اللهم انصرنا بالنبي المبعوث في آخر الزمان .

با سببيه به يې پرې داخله كړه لكه څرنګه چې واستعينوا بالصبر والصلاة وسيله بالعمل الصالح د باء نه ثابتو ، نو بالنبي كې با په ذات باندې داخله شوه وسيله په ذات باندې شوه .

كله به يې وويل :

اللهم انصرنا باسم النبي عَلَيْهِ السَّلَامُ .

نو چې باسم النبي شو توسل قولي دي توسل قولي توسل باسم الرجل الصالح ته ويلې شي .

كله به يې وويل :

اللهم انصرنا بحق النبي عَلَيْهِ السَّلَامُ .

دا ټول الفاظ يوه معنى لري دا ددوي د دعاء نچوړ وه ، هغه ددوي د عاء نه تعبير وشو په يستفتحون على الذين كفروا طلب د فتحې من الله به يې بحق النبي بالنبي دا دوي كوه .

تفسير درمنثور جلد ۱ صفحه ۲۱٦ دي دا ټول روايات جمعه کوي :

أخرج ابونعيم في الدلائل من طريق عطاء والضحاك عن ابن عباس قال كانت يهود بني قريظة والنضير من قبل ان يبعث محمد صلى الله عليه وسلم يستفتحون الله .

معنى څه يدعون دعاء ګاني به يې کولې .

على الذين كفروا په مقابل د کفارو کې الفاظ د دعاء به يې څه و ديقولون اللهم انا نستنصرك بحق النبي عليه السلام الامي الا نصرتنا عليهم ، مونږ مدد غواړو تا نه بحق النبي الامي الا نصرتنا عليهم .

استثناء شته مستثنى منه نشته کوم ځای کې چې مستثنى مذکوره مستثنى منه متروکه وي اشاره تعيمم ته وي نو داسې وايي نستنصرك بحق النبي الامي اى لانستنصرك بشيء الا بالنبي يا نستنصرك بحق النبي الامي دې وخت کې بل هيڅ دعا درنه ، نه غواړو مګر مدد غواړو زمونږ مدد وکړه .

فينصرون ددوي به امداد وکړې شو د فينصرون حواله به وروسته راشي .

نو دليل دا شو چې ددوي دعاء به قبوله شوه امداد به وشو ګوري په دې کې بحق النبي راغي .

واخرج ابونعيم في الدلائل من طريق الكلبي عن أبي صالح عن ابن عباس رضي الله عنه قال كان يهود اهل المدينة قبل قدوم النبي صلى الله عليه وسلم اذا قاتلوا من يليهم من مشركي العرب من اسد وغطفان وجهينة وعذرة .

قبيلي دي يستفتحون عليهم معنى يستنصرون څه معنى يدعون دعاء به يې غوښتله عليهم په مقابل د کفارو کې بإسم نبي الله فيقولون اللهم ربنا انصرنا عليهم باسم نبيك وبكتابك .

نو توسل باسم النبي دا توسل قولي ده .

دارنګې بل ذکر کوي :

واخرج الحاكم والبيهقي في الدلائل عن ابن عباس رضي الله عنه قال : كانت يهود خيبر تقاتل غطفان فكلما التقوا هزمت يهود . يهودو به شکست خوړ .

فعاذت بهذا الدعاء . دوي دا دعاء شروع کړه :

اللهم انا نسئلك بحق محمد صلى الله عليه وسلم النبي الامي الذي وعدتنا ان تخرجه لنا في آخر الزمان الا نصرتنا عليهم فكانوا اذا التقوا دعوا بهذا فهزموا غطفان .

چې دا دعاء به يې وکړه نو مشرکينو به شکست خوړ شکست به يې ورکړ مشرکينو ته .

نو څومره شان نزولونه چې وکتل شي دوي په دغه الفاظو دعاء کړې ده .

دا ما چې کوم الفاظ نقل کړه تفسير ابن کثير جلد ۱ صفحه ۳۲۷ د هغې عبارت دابن عباس صاحب دادی :

فقالوا اللهم انا نسئلك بحق النبي الامي الذي وعدتنا باخراجه في آخر زمان الا نصرتنا عليهم قال فنصروا عليهم .

ددوي امداد به وکړې شو په مقابل د کفارو کې يا فنصروا غالب به شول .

دا رنګې تفسير الثعالبي جلد ۱ صفحه ۵۲ د هغې عبارت هم دادې :

فقالوا اللهم انا نسئلك بحق محمد النبي الامي الذي وعدتنا ان تخرجه لنا في آخر الزمان الا نصرتنا عليهم فكانوا اذا التقوا دعوا بهذا الدعاء فهزموا غطفان .

دا رنګې تفسير مقاتل جلد اول صفحه ٦٣ :

كانت اليهود اذا قاتلوهم قالوا : اللهم انا نسئلك باسم النبي الذي نجد في كتابنا فينصرون عليهم .

امداد به ددوي وشو مقابل د کفارو کې .

دا رنګې تفسير ابن ابي حاتم جلد ۳ صفحه ۴۹۰ دې کې راځي :

ان اليهود كانوا يستفتحون على الاوس والخزرج برسول الله صلى الله عليه وسلم .

نو بدعاء رسول الله تاويل خو نه شي کيدې ځکه دغه وخت کې رسول الله نه وه دنيا کې

موجود.

دارنګې مستدرک على الصحيحين للحاكم جلد ۷ صفحه ۱۷۰ :

**فعاذت اليهود بهذا الدعاء : اللهم انا نسئلك بحق محمد النبي الأمي الذي وعدتنا .**

په دې کې هم دا راځي :

**فكانوا اذا التقوا دعوا بهذا الدعاء فهزموا غطفان .**

دارنګې الشريعة للاجيري جلد ۳ صفحه ۷۸.

تفاسيرو دغه روايات بدون سند را اخيستي دي او دې يې سند ذکر کوي :

**فقالوا اللهم انا نسئلك بحق محمد النبي الامي الذي وعدتنا انك تخرج لنا في آخر زمان الا نصرتنا عليهم فكانوا اذا التقوا دعوا بهذا الدعاء فهزموا غطفان .**

دارنګې دلائل النبوة د بيهقي جلد ۱ صفحه ۴۶۱ دا يې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په دليل د صدق نبوت کې را اخستې منکر دې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د نبوت د دلائلو منکر دي .

امام بيهقي په دلائل النبوة کې را اخلي چې نبي اکرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د نبوت د صداقت يو دليل دا دی چې دده د پيدائش نه مخکې خلکو دده په وسيله دعاء غوښتې ده قبوله شوې ده دا دليل د صدق نبوت دده ده . دې يې هم خپل سند سره ذکر کوي :

**فعاذت اليهود بهذا الدعاء فقال : اللهم انا نسئلك بحق النبي الامي .**

آخر کې الفاظ دا دي : **فهزموا غطفان .**

دارنګې دلائل النبوة د ابي نعيم جلد ۱ صفحه ۵۲ کې امام ابونعيم رَحِمَهُ اللَّهُ هم دا حديث په دليل د صدق نبوة کې را اخلي تاسې که ددوي کتب وګورئ چې دوي جرحه په چا کوي .

الشريعة للاجري د هغې سند دا دی :

**انبأنا ابراهيم بن موسى الجوزي قال حدثنا يوسف بن موسى القطان قال حدثنا عبدالملك بن هارون بن عنترة عن ابيه عن جده متروك .**

دغه راوي باندې جرحه ده عن ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ.

د دلائل النبوة ابونعيم سند :

حدثنا حبيب بن الحسن قال حدثنا محمد بن يحيى المروزي قال حدثنا احمد بن ايوب قال حدثنا ابراهيم بن سعد عن محمد ابن اسحاق انه قال بلغني عن عكرمة مولى ابن عباس وعن سعيد ابن جبير عن ابن عباس .

په دې کې عبد الملک بن هارون بن عنتره راغلي .

جرحه چې په کوم سند کوي نورو طروقو ددې حديث ته لاړ شه نورو طروقو د حديث کې دغه راوي نشته په کوم چې تاسو جرحې کوي او معنى يوه ده .

په دې کې هم دادي چې :

قد كنتم تستفتحون علينا بمحمد (ﷺ) وانا على الشرك .

په دې کې براء بن معرور داد مشرکينو نه وه ايمان يې راوړ يهوديانو ته ودريده وويل : اى يهوديانو !

اتقوا الله واسلموا . خداى نه وډار شي ايمان راوړي .

قد كنتم تستفتحون علينا بمحمدٍ وانا اهل الشرك .

مونږ چې کله مشرکان وُو تاسو سره مو جنګ راتللو نو تاسو به د خالق نه دعاء غوښته بمحمدٍ په وسيلې د نبي عليه السلام اوس چې هغه راغې ولې ايمان نه راوړي .

د مشرکينو نه يو کس براء بن معرور ايمان راوړ و يهوديانو ته پيغور ورکوي چې هغه وخت را ياد کړي چې تاسې به په ده وسيله نيوله .

نو نچوړ خو يو ده چې وسيله بمحمدٍ ده نو معنوي تائيد د هغه رواياتو کوي .

دا ما د هغه عمده تفاسيرو حوالې ذکر کړي باقي چې څو مره تفاسير دي که هغه په دغه ځاى کې وکتل شي شان نزول کې همدغه الفاظ بيانوي .

خو تفسير روح المعاني دا هم ليکلي دي چې لاسونه به يې د نبي عليه السلام په نوم کينبودل توراة شريف به يې خلاص کړو او هغه نوم باندې به يې لاسونه کينبودل .

## إيرادات :

ددوي زمونږ په دغه دليل څه اعتراضات دي :

## اول اعتراض :

**هذا دعاء اليهود والله تعالى لم يستجبها .**

داوايي مونږ ته مخ په پيش کوه داد يهوديانو دعاء وه بدعي ناروا دعاء يې کړي الله نه ده قبوله کړي .

دا اعتراض ابن تيميه نه دي کړې الباني نه دي کړي او ماتقريباً څوارلس کتب ددوي يعني د منکرينو د وسيلې کتلې يوه هم دا نه دي کړي .

دا په اهل حديثو کې يو ناپوهه پشاوري کړې دا فتوی د هغه ده پشاوري په خپله فتاوی الدين الخالص جلد ۱ صفحه ۱۳۱ :

**استدلوا ايضاً بقوله تعالى : وكانوا يستفتحون على الذين كفروا . قالوا كانوا يقول الله اللهم انا نسئلك بحق النبي ان تنصرنا كما في القرطبي والجواب .**

اوس جوابونه کوي يو جواب دا کوي :

**هذا دعاء اليهود والله لم يستجبه.** دا يهوديانو دعاء وه خدای تعالى نه ده قبوله کړي.

او ما چې څومره حوالې مخکې ذکر کړي هغلته الفاظ دا وه :

**فينصرون .** امداد به يې وشو .

يا الفاظ دا وه : **فنصروهم** ، يا الفاظ دا وه : **فهزموا غطفان** ، شکست يې ورکړ .

عبدالله ابن عباس رضي الله عنهما د دغه دلائل النبوة د بيهقي دلائل نبوة د ابو نعيم شريعه د آجيري وغيرهم نو دا څومره حواله جات چې دي دليل دده دي چې :

**فنصروا فينصرون فهزموا غطفان .**

دعاء قبوله شوې ده .

دا ناپوهه وايي دعاء نه ده قبوله شوې نو اوس دده نه مونږ څه جواب وکړو .

دومره به ووايو چې دروغ يې ويلې ، دعاء يې قبوله شوې ، کتبو دا ويلې ، او پشاوري وايي چې نه ده قبوله شوې .

## دوهم اعتراض :

**هذا من شرائع من قبلنا والاستدلال لا لنا فيها .**

دا شرائع من قبلنا دي ، مونږ ته څه دليل دې کې نشته .

دا اعتراض ابن تيميه هم کړې ، ابن قيم او الباني هم کړي دي وزوستنې چې کوم اهل حديث دي هغوي هم کړې چې دا شرائع من قبلنا دي مونږ لپاره څه دليل نه دي .

دې کې جزيه د جمهورو چې شرائع من قبلنا مونږ د پاره دليل دي او که نه دي د جمهورو رأيه داده چې ماسبق شريعت دا مونږ ته شريعت دي تر څو چې نسخه مصرحه نه وي نسخه چې رانه شي دا مونږ ته دليل دي .

ثبوت يې د سورة انعام دا آيت دي :

﴿فَبِهُدَاهُمُ اقْتَدِهْ﴾ . ( سورة انعام آيت : ۹۰ )

ددې انبياء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ په هدايت پسې ته اقتداء وکړه .

دغه ځای کې رايه د جمهورو داده چې هدا عامه ده .

اعتقادياتو ته هم شامله ده شرعياتو ته هم شامله ده ، نو يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د هغوي شريعت پسې اقتداء وکړه .

ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې هر کله نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ مامور شو په اقتداء د انبياء ماسبق او مونږ مامور يو په اقتداء د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نو بالواسطه مونږ هم مامور شه په اقتداء د شرائعو من قبلنا باندې تر څو چې نسخه مصرحه نه وي .

نو تفاسيرو کې چې تاسو دا مسئله پيدا کوي چې شرائع من قبلنا مونږ لپاره دليل دی او که نه نو فبهداهم اقتده کې تفاسير وګورئ .

په تفاسيرو کې مسائل وي خو ځای يې چاته نه وي معلوم .

په تفسير کې ددې مسئلې ځای فبهداهم اقتده دي .

دويم دليل سورة نساء کې راځي :

﴿وَيَهْدِيَكُمْ سُنَنَ الَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ﴾ ( سورة نساء آيت : ۲۶ )

چې وښايي تاسو ته طريقې د من قبلکم باري تعالى تاسو باندې تخفيف راولي .
د من قبلکم د طريقو هدايت درته کوي نو دا دليل ددې شو چې قرآن عظيم تول په تول له شرائع من قبلنا منسوخ کړې نه دي .
بلکې څه جزيات يې منسوخ کړي چې کوم ځای کې نسخه مصرحه راغلله بيا دليل نه دي .
نو اوس دې مونږ ته څوک دا وښايي چې توسل بالذوات الفاضله په هغه دينونو کې جائز خو زمونږ دين کې ناروا .
لکه سجده تعظيمي هلته روا مونږ ته حرامه ده حديث پرې شته نو دا شان دې توسل کې مونږ ته څوک پيش کړي چې هلته جائز مونږ ته ناروا .
نو چې نسخه نه شي ښودلې شرائع من قبلنا مونږ ته دليل دي او دليل دې باندې عبارات د فقهاء او اصوليينو دادی :
تفسير قرطبي جلد ۱ صفحه ۳۱۳:
مسألة : في قصة البقرة هذه دليل على ان الشرع من قبلنا شرع لنا .
د ماقبلنا شريعت زمونږ لپاره شريعت دي .
وقال به طوائف من المتكلمين وقوم من الفقهاء .
په دې د متکلمينو څه ډلې او د فقهاو يو قوم قائل دي .
واختاره الكرخي . د احنافو نه کرخي اختيار ورکړې .
ونص عليه ابن بكير القاضي من علماءنا .
چې مالکي دي .
وقال القاضي ابو محمد عبدالوهاب هو الذي تقتضيه اصول مالك .
د امام مالک صاحب اصول هم ددې تقاضا کوي چې شرائع من قبلنا دليل دي .
واليه مال الشافعي .

دي ته امام شافعي صاحب هم ميلان کړي .

نو جمهور علماء په دې شول چې شرائع من قبلنا زمونږ لپاره دليل دي ترڅو چې نسخه نه وي .

دارنګې تفسير رازي جلد ٦ صفحه ٣٦٥ :

قال آخرون : المراد الاقتداء بهم في شرائعهم الا ما خصه الدليل .

دځه علماو قول دادی چې :

فبهداهم اقتده . اقتداء هغوي پسې په شريعت کې په کار ده .

ترڅو چې تخصيص دليل نه وي په نسخه کې .

وبهذا التقدير كانت هذه الأية دليلاً على ان الشرع من قبلنا يلزمنا .

په دې کې دليل ددې خبرې شو چې شريعت من قبلنا لازم دي په مونږ اتباع د هغې .

دارنګې تفسير اللباب د ابن عادل جلد ٧ صفحه ٤٠ فبهداهم اقتده شرحه کوي :

المراد الاقتداء بهم في شرائعهم الا ما خصه الدليل على هذا . فالأية دليل على ان الشرع من قبلنا يلزمنا .

دارنګې تفسير نيسابوري جلد ٣ صفحه ١٦٨ :

وقد يستدل بالاية على ان الشرع من قبلنا يلزمنا لان الهدى والنور لا بد ان يكون احدهما يتعلق بالفروع والآخر بالاصول والا كان تكراراً .

امام نيسابوري استدلال کوي : هدا او نور نو لابدي دې نه شوه چې دا يو چې هدا دی دا دې فروع شي او دا نور دا دې اصول شي که دا بيل بيل وانه خلو کان تکرار تکرار به لازم شي نو معلومه شوه چې اعتقادياتو او په شرعياتو کې عمليات فروعاتو کې تولو پسې اقتداء کوه ترڅو چې نسخه نه وي .

دارنګې تفسير خازن جلد ٢ صفحه ٤١٩ همغه آيت کې دليل وايي :

وفي الأية دليل على ان الشرع من قبلنا شرع لنا .

دارنګې اضواء البيان في التفسير القرآن بالقرآن :

وَأَذِّن فِي النَّاسِ بِالْحَجِّ يَأْتُوكَ رِجَالًا.

څه ډير علماء فقهاء دي ايت کريمه نه فرضيت د حج ثابتوي نو چې دې نه فرضيت د حج ثابتوي دا خو ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَام اعلان کړې وه چې شرائع من قبلنا چې دليل نه دي نو فريضه څنګه ثابتوي نو وايي:

وعلى قول الجمهور فوجوب الحج بها على هذه الامة مبني على ان الشرع من قبلنا شرع لنا.

د جمهورو په نزد باندې چې دې آيت نه د حج فرضيت ثابتيږي نو هله به ثابتيږي چې شرع من قبلنا دې زمونږ شريعت شي.

دارنګې تفسير دفع ايهام الاضطراب عن ايات الكتاب جلد ۱ صفحه ۲۴ هغه دويم آيت چې ما پيش کړې وه:

يُرِيدُ اللَّهُ لِيُبَيِّنَ لَكُمْ وَيَهْدِيَكُمْ سُنَنَ الَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ.

ددې نه هم پته لږي سنن د من قبل تاسو ته ښايي:

هذه الايات تدل بظاهرها على ان الشرع من قبلنا شرع لنا فجمهور العلماء على ان الشرع من قبلنا ان ثبت بشرعنا فهو شرع لنا ما لم يدل دليل من شرعنا على نسخه.

دارنګې عمدة القاري شرح د صحيح البخاري جلد ۵ صفحه ۲۸۴: دا ذکر کوي د موسى عَلَيْهِ السَّلَام چې کوم عرياناً اغتسال په دغه باب کې:

لكن هذا مبني على ان الشرع من قبلنا من الانبياء عَلَيْهِمُ السَّلَام هل يلزمنا ام لا فيه خلاف والاصح انه يلزمنا ان لم يقص الله علينا بالانكار.

دارنګې فتح الباري د ابن حجر جلد ۱۳ صفحه ۳۵۶:

واستدل بهذا على ان الشرع من قبلنا شرع لنا هي مسئلة مشهورة في الاصول.

دارنګې شرح د مختصر خليل للخرشي جلد ۱ صفحه ۱۶:

بناء على ان الشرع من قبلنا شرع لنا ما لم يرد ناسخ.

دارنګې حاشية العدوي جلد ۸ صفحه ۳۲۱:

على ان الشرع من قبلنا شرع لنا ما لم يرد ناسخ.

دارنګې الموسوعة الفقهية الكويتية جلد ۲۷ صفحه ۱۴:

ان هذه الايات وغيرها تدل على ان الشرع من قبلنا من الانبياء شرع لنا.

دارنګې مجموع فتاوى ابن تيميه جلد ۱ صفحه ۷۶:

ان الشرع من قبلنا هل هو شرع لنا ام لا والنزاع في ذلك مشهور لكن الذي عليه الائمة واكثر العلماء أنه شرع لنا مالم يرد شرعنا بخلافه.

دا هغه دويم اعتراض ددوي وه چې ددوي ټولو سر كرده وو منكرينو كړي دي چې دا شرائع من قبلنا دي زمونږ لپاره دليل نه دي نو ما څكه دا حوالې ذكر كړي چې [illegible] خبره بې بنياده د جمهورو خلاف ده د جمهورو رأيه داده چې شرائع من قبلنا زمونږ لپاره دليل دي ترڅو چې نسخه نه وي.

دريم اعتراض: په دغه شان نزول باندې چې كوم اهل كتابو توسل نيولئ دي:

وايي په سند ددې روايت كې:

عبد الملك بن هارون بن عنتره عن ابيه عن جده فعبد الملك متروك كما قال به الذهبي.

دهغې جواب به داوي چې روايات د توسل داهل كتابو بالنبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دري دي: بعضو كې باسم النبي دي، بعضو كې بحق النبي دي، بعضو كې بمحمد دي معنى د ټولو يوه ده.

دغه راوي عبد الملك بن هارون روايت د دلائل النبوة د بيهقي الشريعة د آجيري په دې كې دا مذكور دي.

او هر چې روايت د ابي نعيم دي په هغې كې دغه راوي چې دوي پرې جرحه كوي نشته او متن د وروستني حديث دې سره موافق نه دي خو معنى يې يوه ده معنى داده چې توسل بمحمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شوې دي او توسل بمحمد باسم النبي بحق النبي دا يوه معنى ده.

لهذا دا وروستني روايت متابع شو لپاره د هغه روايتينو که څه نا څه په دغه راوي باندې جرحه شته او سبب د ضعف جوړيږي خو په متابعت کې ورته مونږ هغه دويم روايت د ابي نعيم د دلائل نبوت نه پيش کړ چې په هغې کې دغه راوي نشته هغه تائيد قوت ورکوي دغسې سند لره .

ابن ابي حاتم و ابي نعيم اعتراض ما ددې جواب په خپله رساله کې کړي دي .

في بعض الروايات السؤال بحق النبي كما في رواية الحاكم والبيهقي والشريعة للآجري وفي بعض الرواية السؤال بالنبي كما في رواية ابن ابي حاتم في تفسيره ودلائل النبوة لابي نعيم عبدالملك في سند الرواية الاولى دون الثانية ومراد الرواية الثانية والاولى واحد لان السؤال بالنبي وباسم النبي هذا هو التوسل القولي الذي هو مرادنا ومورد بحثنا . في هذه الرسالة فرواية ابن ابي حاتم وابي نعيم كثير شاهدا على رأي بعض الأصوليين لرواية الآجري والبيهقي والحاكم .

او دا ما تاسو ته په اصولو کې ويلې چې که يو حديث ضعيف هم شي خو چې تعدد د طرقو راشي نو حسن لغيره ترې جوړ شي حسن لغيره د مقبولاتو نه دي استدلال ترې نه کيدې شي تاسو په مقابله کې مونږ ته يو قوي پيش کړي بيا دا رده وي .

**څلورم اعتراض : رستمي کړي او ددې علاقې وهابيانو يې تقليد کړې :**

په شان نزول ددې آيت کريمه کې احتمالات دي او اذا جاء الاحتمال بطل الاستدلال .

هذه الآية تحتمل تاويلاة ثلاثة ذكر الالوسي في تفسيره روح المعاني فلا استدلال مع الاحتمال .

دا قاعده شته په اصولو کې خو دوي يې په مقصد نه پوهيږي مقصد ددې چې : اذا جاء الاحتمال بطل الاستدلال دا دی احتمال احتمالان دوه دي يو احتمال ناشي من دليل دي بل غير ناشي من دليل دي يعني يو مجرد احتمال دي بل احتمال ناشي من دليل دي بيا چې دا کوم

احتمال ناشي من دليل احتمالين دي ته به گوري چې دا احتمالين په خپلو کې متضاد دي که غير متضاد دي که غير متضاد وه نو بيا توافق شته په کې بيا بطل الاستدلال ولې شو خو هغه احتمالينو کې توافق وکړه کنه که داسې وشو چې احتمالين ناشي من دليلين او په دغه احتمالينو کې تدافع ده دې صورت کې چې دا يو احتمال ناشي من دليل دي دا دفعه کوي هغه بل احتمال چې ناشي من دليل اذا جاء الاحتمال بطل الاستدلال ولې اذا تعارض تساقط ځکه تعارض راغې چې تعارض راغې دواړه د استدلال نه ساقط شول.

خو دا به هغه وخت کې وي چې احتمال د خصمينو به متضاد وي احتمال د روايتينو به متضاد وي نو صاحبانو دلته تضاد چرته دي يو روايت کې راځي توسل يې وکړو بمحمد يا بالنبي بل کې راغې چې توسل يې وکړو باسم النبي، بل کې راغې توسل دي بحق النبي دې کې تدافع کوم ځای کې ده دا خو تول توسل قولي دي يا په لفظ د حق سره مذکور يا په لفظ د اسم النبي سره نو دا باء خو هم سببيه ده نو چې په مينځ کې تدافع نشته دي.

دلته خو احتمالات راغله خو متضاد نه دي کنه چې متضاد نه دي ځنګه د استدلال نه دا ساقطه وي او که مجرد احتمال په شان نزول کې چې مختلف راشي هغلته بيا بطل الاستدلال راځي بيا خو قرآن عظيم الشان ټول د استدلال نه ساقط ځکه داسې آيت نشته چې د هغې په شان نزول کې پنځه يا شپږ مختلف روايت نه وي دا مکي دي دا مدني دي دا دې باره کې نازل دي يا ددې لپاره تاسو د شان نزول کتب وګوري هر آيت کې احتمالات ذکر کوي خو هغه احتمالات چې متضاد نه وي بيا چې کله متضاد په شان نزول کې راشي هلته مفسرين دا قاعده نه جاري کوي چې يره شان نزول کې تضاد راغې بطل الاستدلال ولې قرآن کريم دي د استدلال د پاره ته پرې ځنګه استدلال باطلوي هغلته بيا دوي دفعه په دې سره کوي چې ايت نازل شده ده مرتين يو ځل به دې کې نازل وي.

بل ځل دي کې بيا داسې جواب ترې نه کوي داسې نه کوي چې استدلال باطل کړي بس دا متضاد راغلل يو يې مکي کړ بل يې مدني کړ دوه ځايه به نازل شوې وي نو دا محض ددوي خبره: اذا جاء الاحتمال بطل الاستدلال هغې کې يوه خبره ده چې کله احتمال ناشي من

دليل وي بيا په خپلو کې متضاد وي توافق يې نه راځي په قاعدې د اذا تعارضا تساقطا سره دواړه درجې د استدلال نه ساقطيږي او دلته تضاد نشته دي.

## دريم دليل د قرآن عظيم الشان نه :

سورة مائدة آيت : ۳۵ :

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَابْتَغُوا إِلَيْهِ الْوَسِيلَةَ وَجَاهِدُوا فِي سَبِيلِهِ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾.

ای ايمان والو ! د الله نه ويريږئ ولټوئ الله لره وسيله معنين دي په کې يوه معنی قربت لکه اوله معنی مونږ په قربت سره کړې ده نو وابتغوا اليه تقرب اليه ده ته نزديکت ولټوي بأي شيء آيت ساکت وسيله ثابته شوه خو متوسل به مذکور نه شو.

يا وابتغوا اليه الوسيلة وابتغوا اليه ما يتوصل به الى الغير هغه څيز الله ته ولټوي په کوم څيز چې نزديکت الله ته راځي هغه څه شي دي پته نه لږي آيت ساکت دي.

هر کله چې آيت ساکت شو دې ځای کې تاته اصول شته تفاسير شته ته به اوس څه کوي اصول ستا دا وايي چې کله مطلق راشي دوه قاعدې تاته ذکر کوي يوه قاعده دا مطلق صرف کيږي فرد کامل ته دويمه قاعده دا مطلق يجري على اطلاقه دا قاعدې په خپلو کې تدافع لري که مطلق جاري په خپل اطلاق شي نو شمول د حکم د مطلق کل افرادو د مطلق ته سيان معنی يې دا شوه په اطلاق يې جاري کړه کل افرادو ته حکم شامل دي.

او که مطلق صرف فرد کامل ته وشي نو فرد کامل به مراد وي نور به مراد نه وي نو تضاد راغې کنه که صرف فرد کامل ته که يې يو فرد به مراد وي نور به نه مراد وي که په خپل اطلاق يې جاري کوي نو شمول د حکم کل افرادو د مطلق ته سيان ټولو ته شامل شو اوس يو مراد وي که ټول مراد وي نزاع راغله.

مولوي دد غې قاعدې توافق کوي مطلق ته وګوره دا مطلق ذات دی که وصف که مطلق چيرته ذات وي نو صرف يې فرد کامل ته وکه.

او که مطلق چيرته وصف وي نو په خپل اطلاق يې جاري که.

**قوله تعالى :** ﴿سُبْحَانَ الَّذِي أَسْرَى بِعَبْدِهِ لَيْلاً مِنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ﴾.

يې مثال شو، بيولي بنده خپل ليلاً د شپې بنده ته هم يې ته يې نه يې بيولې ولې ته نه

يې مراد ځکه عبد ذات دي ذات چې ذکر شي مطلق صرف يې کېږي فرد کامل ته او کامل اکمل په عبادو کې هغه يو ذات دي په ټولو کې کامل دي نو دې ترې مراد ده عبد نه زه او ته ترې مراد نه يو او که ذات چيرته وصف وي په خپل اطلاق يې جاري کړه شمول د حکم کل افرادو ته وکړه .

وابتغوا اليه الوسيلة اوس دلته وصف دي نو چې هر کله وصف دي په خپل اطلاق به يې جاري کوي شمول د حکم به کل افرادو د وسيلې ته سيان وي ټول به مراد وي الله ته نزديکت ولټوه بالعمل الله ته نزديکت ولټوه په توسل فعلي الله ته نزديکت ولټوه په توسل قولي د وسيلې چې څومره انواع دي ټولو ته شامل شو .

دا طريقه د اخذ او استدلال شوه د آيت کريمه نه .

يوه بله طريقه اصولي باندې هم ته بحث جوړولې شي هغه دا چې دلته قيد لړول :

وابتغوا اليه الوسيلة بالعمل دون الذات .

دا نه دي مګر تقيد د مطلق او تقيد د مطلق دا نه دي په اصولو د احنافو کې مګر نسخه د مطلق ده تر بعضې افرادو تقيد د مطلق نسخه د مطلق ده په بعضې افرادو کې حکم بعضې افرادو کې حکم بعضې افرادو ته نه شاملوي چې نه يې شاملوي نسخه دې په هغه افرادو کې راوسته او نسخه د قطعي دا په ظني باندې نه شي کيدې نو په قول د رُستمي او بشاوري به څنګه وشي ديو مفسر په قول هم نه شي کيدې چې تا په تفسير هم دلته وليدل چې وابتغوا اليه الوسيلة بالعمل نو داسې مه وايه چې بالذات نه بيا خو ته تقيد کوي تقيد مه کوه ځکه دا تقيد د مطلق ده او تقيد د مطلق دا نسخه د مطلق ده د بعضې افرادو نه حکم د مطلق دي بعضې افرادو نه منسوخ کړه او نسخه د مطلق د قطعي په قطعي باندې کيږي اوس به ته په بل متواتر حديث کې يا په بل آيت کې استثناء ثابتوي که دې ثابته نه کړه نو د چا په قول ته تقيدات نه شي کولې .

زيات تشريحِ اِلہ ته وسيلې ولټوي عام خالق ذکر کوي بالعمل يې نه ده ويلې بالذات يې نه ده ويلې نو حکم ټولو ته شامل شو اوس ته دلته وايې چې عمل مراد دي او ذات مراد نه دي تقيد دي وکړو نو تقيد د مطلق دي چې وکړ حکم د دې مطلق چې تر ذات عام وه تا منسوخ

کړنو تقید د مطلق دا نسخه د مطلقوي او نسخه د قطعي په قطعي باندې کیږي داد چا په نول نه شي کیدې ولو که تفاسیر هم دلته څوک پیش کړي قبول به نه وي .

ما قبول دي خو ذکر د شي نفي د ماعدا نه کوي تخصیص بالشيء نفي د ماعدا نه کوي .

یو فقیه وویل چې :

وابتغوا الیه الوسیلة بالعمل ....

نو دا اوس په کې ته داخلوي چې دون الذات دا خو هغه نه دي ویلې هغه غلي ده ددې نه چې هغه ساکت دي نو ته هم ساکت شه لکه تصریح په یوه نوعه د شي باندې دا خو رد په نوعې آخرې باندې نه وي لکه زه توسل بالذات ثابتوم او دا دلیل پیش کړم نو دا خو ما باندې الزام نه شو چې زه د توسل بالعمل منکر یم یا ما توسل بالذات ثابت کړ توسل بالعمل ګڼې دې نه ، نه ثابتیږي نه څوک به توسل بالذات اخلي څوک به یې بالعمل اخلي څوک به یې عام اخلي چې هر یو یې واخیست رد په آخر نه جوړیږي دلته نو تخصیص بالشيء نفي د ماعدا نه کوي او تخصیص بالشيء لسبب نفي د ماعدا ګرځول استدلال په وجه مخالفه ده نه په موافقه باندې .

نو هیڅ جواب ددې آیت دوي سره نشته سوا د یو څه نه چې دوي وایي قرآن او سنت چې کله بند شي نو بیا مفسرینو ته مجبور شي نو وایي :

وقد اتفق المفسرون من لدن الصحابة الی یومنا هذا الا المبتدعین المعاصرین علی ان التوسل المامور به في هذه الایة انما هو التوسل بالایمان والعمل الصالح واسماء الله وصفاته ولم یقل احد منهم بانما علی ان الایة توسل الیه بوسیلة الصالحین .

وایي د صحابوو نه تر اوسه پورې یو مفسر هم وسیله په صالح نه ده اخیستې اوس یې مفسر ته ضرورت پیدا شو وایي دا وسیله بالعمل مراد ده صالح نه ده مراد ګڼې مفسرینو به رااخیستې واي نو مفسرین خو دوي ته ډیر مقبول دي ځکه یې مونږ ته دلیل کې پیش کوي .

مونږ به ددوي د اعتراض صرف دفعه وکړو او د مفسرینو فقهاو اقوال او عبارات به وګورو چې دې ځای کې اخذ کړي او که نه یې دي کړي :

تفسیر روح المعاني جلد ۴ صفحه ۱۸۷ د روح المعاني متعلق صرف یوې خبرې ته لږ متوجه شي : خاصکر افغاني طالبان او علماء زمونږ د افغانستان علماء اکثر کتابونه نه لري مکتبې نه لري او د پاکستان علماء مکتبې لري خو علماء د افغانستان محققین دي او د پاکستان علماء ظاهربین دي ولو که مفتیان هم دي سخت زړه ور دي ډیر زر فتوی ورکوي تحقیق نه کوي بیا چې ورته ووایي چې خطاء شوې یې ضد او عناد هم نه کوي خپله خطائي مني.

خو د افغانستان علماء تر هغه فتوی نه ورکوي چې تحقیق یې نه وي کړي کمزوري دوي کې داده چې مکتبې اسباب نه لري د افغانستان لوي عالم دا وي چې په تفاسیرو کې روح المعاني ورسره وي نو بیا په روح المعاني انتهائي غټ اعتماد لري زما مطلب دا نه دي چې زه تاسو په کتبو بې اعتماده کړم خو چې د یو سړي کتاب کې گوتې وهل شوې وي او کتاب په هغه شکل نه وي پاتې چې کوم مصنف لیکلې وي نو بیا ترې لږ احتیاط په کار ده.

علامه زاهد الکوثري اشاره کړې په محق التقول کې دې خبرې ته چې د محمود آلوسي ځوي عثمان آلوسي هغه اهل حدیث غیر مقلد وه او پلار یې صوفي وه پلار یې دا تفسیر ولیکه دې وفات شو په دې تفسیر کې چې څومره متضاد اقوال د اهل سنت په نظر در ته راغلل دا په کې د عثمان آلوسي لخوا گوتې وهل شوې یعنې عثمان آلوسي د محمود الوسي ځوي په کې گوتې وهلې.

ما ته یو عالم چې دا اسلامي او جهادي تنظیمونو سره وابسته وه او پخوا د جهاد دوره کې عربو ته د چندو لپاره تللې وه په مکتبو ډیر گرځیدلې وه ډیر پوي عالم وه هغه ما ته وویل چې په مکه معظمه کې یوه عظیمه مکتبه کې ما د محمود آلوسي په گوتو لیکلې شوې تفسیر پیدا کړ وایي ما د مکتبې والا نه تپوس وکړ چې دا تفسیر د چا دي هغه وویل چې داد محمود آلوسي د خپلو گوتو لیکلې تفسیر دي وایي بیا صاحب د مکتبې ما ته وویل چې محمود آلوسي دوه نسخې په خپلو گوتو لیکلې وې دا چاپ خانې هغه وخت کې نه وې یوه یې ولیکله بیا یې هغې نه بله ولیکله.

بیا د فارس بادشاه ده ته ملاقات ته راغې او دده تفسیر هغه ترې نه په ډیر قیمت واخیسته وې وړو نو دا نسخه فارس ته لاړه هغه دویمه نسخه یې کور کې پاتې شوه دغه وخت سره د انډیا بادشاه فارس ته راغې هغه به علماء وه د فارس د بادشاه په مکتبه کې د

محمود آلوسي روح المعاني وليده وايي دا مې خوبنه شوله دا ماته راكړه د فارس بادشاه ورته وويل چې د دې مصنف حيات دې زه به دې كورته ملاقات ته ورولم.
كه دويمه نسخه وه در به يې كړې د فارس بادشاه او د انډيا بادشاه دواړه په شريكه بغداد ته د آلوسي كورته لاړل اتفاقاً آلوسي وفات شوې وه ځوي يې عثمان آلوسي دده په كتاب كې پوره ګوتې وهلې وې هغه دويمه نسخه كې بادشاه ورته وويل چې داد انډيا بادشاه دې دا نسخه ده ته وركړه.
وايي په دې شرط يې وركوم چې دوه ځل به يې د سوني سره تلي يا به يې وركړم د انډيا بادشاه دوه ځل روح المعاني د سونې سره وتله او دا يې ترې راواخيست وايي دا تاسو چې په عرب عجم كې كوم تفسير ګورې داد عثمان آلوسي تفسير دې چې انډيا ته تلې يا خور شوې دې او چې كوم د فارس بادشاه سره د محمود آلوسي خپل تفسير دې هغه په مكه معظمه كې اوس هم قلمي پروت دې نو دې كې ګوتې وهل شوې دې كې ډير زيات نزاعات دې ما راويستلې دې.
دې آيت كريمه نه لاندې دې څه حصه كې په توسل رد كوي روح المعاني په توسل رد كوي يا اوه ځايه روح المعاني په خپله وايي چې ان شاء الله دا مسئله بيانومه بحرمة النبي عليه السلام نو كه دې په خپله د توسل قائل نه واي نو دې د اوه ځايه وعدې ولې كولې چې دا مسئله په حرمت د نبي عليه السلام ان شاء الله فلاني صورت كې بيانوم.
ما ته دې خداى توفيق راكړي چې زه دا مسئله په حرمت د نبي عليه السلام بيان كړم په آخره كې چې د مفسرينو حواله جات پيش كوم يا به د روح المعاني هغه حوالې دركړم درته.
دلته هم دې په صفحه ۱۸۷ د ۴ جلد كې دا كوم بحث يې چې كړي دې دا تاسو ته چې خلك وايي روح المعاني مخالف دې دا په آخره كې خلاصه وايي:
**وبعد هذا كله انا لا أرى بأساً في التوسل الى الله تعالى بجاه النبي صلى الله عليه وسلم عند الله تعالى حياً وميتاً.**
زه باك نه ګڼم په وسيله نيولو كې خداى تعالى ته په جاه د نبي عليه السلام هغه دنيا كې حيات وي كه دنيا نه تللې وي. بيا په صفحه ۱۸۸ كې بله مسئله ذكر كوي:

بقي ههنا أمران: دلته دوه خبرې نورې پاتې شوې يوه:

ان التوسل بجاه غير النبي صلى الله عليه وسلم لا بأس به ايضاً ان كان المتوسل بجاهه مما علم ان له جاهاً عند الله تعالى. د يو ولي په جاه باندې وسيله هم روا ده باک نشته خو په دې شرط باندې چې د هغه ولايت د مقبولاتو نه وي.

او روح المعاني مكتبه حقانيه جلد ۳ صفحه ۴۰۶-۴۰۷ دغه حوالو کې دا مسئله ذکر کړې ما سره دغه مكتبې والا روح المعاني ده او شيخ صاحب اکثر حوالې د بيروتي چاپ کتابونو ورکولې.

نو دوي وايي چې من لدن د صحابوو نه تر اوسه پورې کوم مفسر اخذ نه دې کړې.
محمود آلوسي دا اخذ دغه آيت کې کړې دغه آيت باندې دغه خبرې کړې.
دارنګې تفسير صاوي جلد ۲ صفحه ۱۸۲:

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَابْتَغُوا إِلَيْهِ الْوَسِيلَةَ﴾.

دې ددې آيت کريمه شرحه کوي: وابتغاء الوسيلة ما يقرب به اليه مطلقاً.
ابتغاء د وسيلې هر هغه شي دی چې دې نژدې کوي خدای تعالی لره مطلق عام دی يعنې هر شي چې دې خدای تعالی ته پرې نيژدې کيږي.

ومن جملة ذلك. د جملې د هغه آلاتو نه چې آله د قرب الى الله دي:

محبة انبياء الله واولياءه والصدقاة وزيارة احباب الله تعالى وكثرة الدعاء وصلة الرحم وكثرة الذكر وغير ذلك فالمعنى كل ما يقربكم الى الله فالزموه.

هر شي چې تاسو خالق ته نژدې کوي هغه کلک ونيسي، واتركوا ما يبعدكم عنه، کوم مو چې ترې لرې کوي هغې نه ځان لرې کړې، اذا علمت ذلك كله چې ته پوه شوې دې باندې چې وسيله دلته عامه ده.

فمن الضلال البين والخسران الظاهر تكفير المسلمين بزيارة اولياء الله تعالى.
د ښکاره ګمراهي نه او د ښکاره تاوان نه دا خبره ده چې يو مسلمان ته د کافر نسبت

وشي په زيارت د اولياء الله باندې زاعمين دوي ګمان کوي ان زيارتهم من عبادة غير الله ، چې زيارت د اولياء عبادت د غير الله دي .

کلا هرګز داسې نه ده :

بل هي من جملة المحبة في الله التي قال فيها رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الا لا ايمان لمن لا محبة له . والوسيلة له التي قال الله فيها وابتغوا اليه الوسيلة .

اود اولياء مزارات چې دي دا وسيلې هغه دي چې رب کريم ويلې وابتغوا اليه الوسيلة.

دارنګې فقهاو کې عبدالحي لکهنوي رَحِمَهُ اللَّهُ شرح الوقاية :

المتوسل اليه بأقوى الذريعة .

دى ځاى باندې حاشيه چې عبدالحي لکهنوي رَحِمَهُ اللَّهُ ليکلي ده هغه وايي :

المتوسل معنى المتقرب بمعنى نزديکت جستن ووسيله خواستن .

وفيه امتثال لقوله تعالى : يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللهَ وَابْتَغُوا إِلَيْهِ الْوَسِيلَةَ . ودلت الاحاديث على جواز التوسل بالاعمال الصالحة والذوات الفاضلة .

دارنګې تفسير روح البيان جلد ۲ صفحه ۲۴۷ دغه آيت کريمه د لاندې ليکي :

واعلم ان الاية الكريمة صرحت بالامر بابتغاء الوسيلة ولا بد منها البتة فان الوصول الى الله تعالى لا يحصل الا بالوسيلة وهي علماء الحقيقة ومشايخ الطريقة .

دارنګې رد المختار جلد ٦ صفحه ۲۹۷ ، د محترم شيخ صاحب کتابونه اکثر بيروتي دي په هغه ځاى باندې خبره کوي :

وكره قوله بحق الرسول .

هدايه کې چې راځي دې کې وايي :

وفي التتارخانية وجاء في الآثار ما دل على الجواز .

په احاديثو کې داسې روايات شته دي چې سوال بحق الغير جائز دي قوله لانه لا حق للخلق على الخالق قد يقال انه لا حق لهم وجوبا على لله تعالى .

حق وجوبي نشته دي .

لكن الله سبحانه وتعالى جعل لهم حقاً من فضله .

حق فضلي يې ورکړي دي .

كان حقاً علينا نصر المؤمنين . په مونږ باندې حق دي مدد د مؤمنانو .

دمؤمنينو دادی حق يې ثابت کړي ځان لره هغه وجوبي نه دي تفضلي دي .

او يراد بالحق الحرمة والعظمة . يا دې مراد حق نه حرمت شي .

فيكون من باب الوسيلة وقد قال الله تعالى وابتغوا اليه الوسيلة .

نو حرمت ته په دې آيت كريمه کې علامه شامي ياد هغې متن څه ويلي دي حرمت باندې سوال يې داخل کړې ده وسيله کې .

وقد عد من آداب الدعاء يتوسل على ما في الحصن .

صاحب الحصن دا ذکر کړي چې د دعا د آدابو نه توسل دي .

وجاء في الحديث : اللهم اني اسئلك بحق السائلين عليك وبحق ممشاي اليك.

دې نه يې هم استدلال کړې دي .

دا رنګې علامه کوثري في محق التقول في مسئلة التوسل صفحه ۲ کې وايي : د وسيلې منکرين چې دي دا په هغه ۷۲ ډلو کې ګمراه کن فرقه حشويه ده .

وهم الحشوية محجوجون بالكتاب والسنة والعمل المتوارث والمعقول .

په باب د وسيلې کې په ذواتو باندې ....... حشويه فرقه چې ده محجوج دي يعنې حجت يې مقابل کې پيش کيږي .

بالقرآن وبالسنة وبالعمل المتوارث وبالمعقول اما الكتاب فمنه قوله تعالى وابتغوا اليه الوسيلة والوسيلة بعمومها تشمل التوسل بالاشخاص والتوسل بالاعمال .

چې وسله عامه شوه دواړو ته شامله شوه .

فكل متبادر من التواسل في الشرع هو هذا .

متبادر په شريعت کې د توسل نه هغه توسل بالذات دي .

# المبحث الثالث تحقيق الوسيلة في ضوء السنة النبوية :

## حديث اول :

ترمذي شريف جلد ۲ صفحه ۱۹۷ رقم الحديث ۳۷۲۱ :

حدثنا محمود بن غيلان قال حدثنا عثمان بن عمر قال حدثنا شعبة عن ابي جعفر عن عمارة بن خزيمة بن ثابت عن عثمان بن حنيف ان رجلاً ضرير البصر أتى النبي صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ .

په سترګو باندې يو کمزورې صحابي رحمت عالم ته راغې :

**فقال ادع الله ،** وي فرمايل ماته دعاء وکړه چې :

**ان يعافيني ،** الله تعالى ماته عافيت په نصيب کړي :

**قال : ان شئت دعوتُ وان شئت صبرتَ فهو خير لك .**

که دې خوښه وي دعاء کوم او که دې خوښه وي صبر وکړه دا تاته ډيره غوره ده ، صحابي عرض کوي :

**قال فادعه ،** دعاء راته وکړه :

**قال فأمره ،** دې ځای ته ګوري .

دا کوم حديث چې جاري دي ښه سوچ په کې وکړي دوي ابن تيميه پسې ذهاب کړي تول منکرين دلته چې راشي وايي چې دا خو توسل فعلي دي نه قولي وايي دا راغلې نبي عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ ته چې ما ته دعاء وکړه دا خو جائز دي د يو شخص صالح نه دعاء غوښتل دا خبره مونږ نه منو چې صالح خالق ته پيش کوي او دعاء ته په خپله کوي دا نه منو توسل اسمي قولي نه منو .

نو اوس تاسو د حديث الفاظو ته ګوري نبي عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ ده ته دعاء نه ده کړي بلکې د دعاء د الفاظو طريقه يې ورښودلې ده هغه خو راغې ؤ دعاء يې وغوښتله .

په حديثو کې دا نشته چې نبي عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ دعاء ورته وکړه بلکې دعائې وروښوده چې دعاء يې وروښوده نو اوس دعاء هغه په خپله کړې ده او په هغې کې يې نبي اکرم صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باري تعالى ته پيش کړي دي ، دغه توسل قولي دي کنه .

خو دا اعتراض ددوي بې ځايه ده چې دا خو راغلي دي دعاء يې غوښتې ده او دا خو جائزه ده نه راغلي دعاء يې غوښتې ده خو رحمت عالم دعاء ورته کړې نه ده بلکې د دعاء الفاظ يې ورته ښودلي دي .

فامره لفظ راغلي چې امر يې ورته وکړ : ان يتوضأ فيحسن وضوءه ويدعوا بهذا الدعاء نو دعاء صحابي وکړه .

دوي ټول رسائلو کې دلته ضد او عناد کوي چونکې دا حديث صحيح دي دوي پرې جرحه نه شي کولې د توسل په باب کې د جرحې نه پاک روايت هغه دا دی نو دوي دلته نورې لارې ورته ګورې بهانې ګوري داسې نه کوي چې دا خپله هوا د حديث تابع کړي مونږ پورې خندا کوي وايي تاسو حديث ته بهاني ګوري او حديث ته خو دوي بهانې ګوري .

مونږ خو د يو فقيه قول راشي هغه په هغې کې څه محمل لټولې وي هغه محمل صحيح وي مونږ يې را واخلو ... د حديث لپاره خپل محمل ولټوو رد وو خو يې نه چې د حديث نه جوابونه کوو .

زمونږ حنفي فقه په احاديثو ردونه ، نه کوي چې دا حديث ضعيف دي دا داسې دي او هسې دي دا ټوله فقه زمونږ وګورئ نا هغه روايت ته يو ښکلي محمل مونږ لټوو او خپل ځان لپاره يې دليل پيش کوو نو دوي ځان ته اهل حديث وايي په کار داده چې حديث پيش کيدې او صحيح وي د سند په لحاظ تسليمي يې هم کولې کنه دا خپله هوا يې پريخودلې او دا خپله هوا يې تابع ګرځولې .

لما جئت به چې رسول الله ﷺ پرې راتلل کړي دي نو دوي وايي چې نه شيخ صاحب ويلي چې جائزه نه ده څنګه يې پريږدو دا اوس پريښودې شي د شيخ خبره به پريږدي او حديث به را اخلي دا خو ډيره ګرانه خبره ده .

نادرشاه مولوي صاحب الله پاک دې قبر دده د جنت د باغيچو نه يوه باغيچه کړي بهترين انسان وه هغه به خندل وايي يو اشاعتي پنجپيري وه غويان يې څرول وايي چې کمرته دا غوائي ورسيده غورځيده نو دلکي نه يې ونيو غوائي لاندې خطا شو دې هم ځان سره خطا کړچا ورته وويل خوشي کړې به دې وه کنه غوائي دې څه کوه ځان دې پرې خوږ کړ .

وايي مونږ ته شيخ صاحب ويلي چې يو شي مو ونيوه ټينګ مو کړ بيا يې مه پريږدي نو

دې پنجيري د غوائي لکي ټينګه کړې وه نو اوس دوي هم چې يو شي ټينګ کړي بيا يې نه پرېږدي په آيتونو کې هم تاويل د ځان نه کوي بهاني لټوي څو مره اعتراضات چې دوي کړي هغه ما تاسو ته ذکر کړه اخوا دوي نور څه اعتراضات نه لري او کاشکې په معارضه کې دوي نصوص لرلې يا هم يوه خبره وه يو آيت يې لرلې يو حديث يې لرلې په توسل کې چې څومره دلائل تاسو وګورئ پيدا به يې نه کړي دوي سره نصوص نشته .

﴿مَا نَعْبُدُهُمْ إِلَّا لِيُقَرِّبُونَا إِلَى اللَّهِ زُلْفَى﴾ .

دا آيت پيش کوي نو د نعبد ، نتوسل څومره فرق دي عبادت وسيلې ته وايي هغوي خو عبادت د بتانو کوه دې لپاره چې مونږ په منزلت کې نزدې کړي خالق لره نو دلته دا غلط تاويل به درته کوي چې ګورئ دا دعاء قولي نه ده فعلي ده او دا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه دعاء غوښتل شوې ده هغه کړې ده هغه نه ده کړې هغه الفاظ د دعاء ښودلې ګوره حديث ته :

ويدعو بهذا الدعاء . امريې ورته وکړ چې دا دا دعاء وکړې دعاء داده :

اللهم اني اسئلك ، يا الله زه سوال کوم له تا نه .

واتوجه اليك بنبيك ، مخامخ کوم تا ته نبي ستا .

محمد نبي الرحمة اني توجهت بك الى ربي .

محمد صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې نبي د رحمت دي يا رسول الله تا خپل رب ته مخامخ کوم.

في حاجتي هذه . زما په حاجت دغه کې .

لتقضى لي ، چې ته پوره کړې ما لره حاجت زما .

اللهم فشفعه في ، يا الله ده د شفاعت زما باره کې قبول کړې .

هذا حديث حسن صحيح غريب .

## إيرادات :

منکرين د توسل په دغه روايت کې په خپلو کې په جګړه دي څه متعصبين پيدا شول چې هغوي دې حديث ته ضعيف وويل تصحيح د امام ترمذي يې رد کړه قبوله يې نه کړه هغوي دليل دا پيش کوي چې ددې په سند کې ابو جعفر راغلې دي لکه سند مخکې تير شوې

دي نو ابو جعفر جعفران دوه دي يو ابو جعفر الرازي دي دويم ابو جعفر الخطمي المديني، ابو جعفر الخطمي المديني ثقة بالاتفاق، ابوجعفر الرازي ثقة سيء الحفظ ده باندې دا يوه جرحه وه چې دې سيء الحفظ وو كان صدوقاً يسيء الحفظ، نو اوس دې سند كې كوم يو جعفر دي.

دا لانجه راغله نسخې د ترمذي دري (٣) راغلې دنيا كې معروفې يوه نسخه چې هغې ته نسخې د بولاق وايي په هغې كې الفاظ دا دي: وابوجعفر هو الخطمي، بس اعتراض دفعه شو چې دا ګنې ابو جعفر رازي دي صدوقاً يسيء الحفظ نه دا ابو جعفر خطمي دي جرحه ختمه شوه.

دوه نسخې نورې دي په يوه نسخه كې راځي: ابوجعفر غير الخطمي، په بله نسخه كې راځي: ابوجعفر ليس بالخطمي، دلته مونږ سره په پاكستان كې چې ده دې كې دادې من حديث ابوجعفر وهو غير الخطمي، دا نسخه غلطه ده صحيح نه ده، دا ابو جعفر خطمي دي، رازي نه دي چې غير خطمي دې كړو نو رازي دې ترې جوړ كړ كنه الصدوق يسيء الحفظ دي نو بيا امام ترمذي ورته ولې صحيح وويل دې يسيء الحفظ حديث ته خو حسن وويل كيږي په قول د ترمذي خو صحيح خو نه ويل كيږي ورته.

اوس څه دلائل دې پر دې چې نسخه د بولاق صحيح ده نسخې خو درې راغلې دي غير الخطمي ليس بالخطمي هو الخطمي، بولاق نسخه كې هو الخطمي دي هغه راجحه ده، دا علامه كوثري وروكې سړي نه دي او ډيره مينه ورسره كوي ځكه د حنفيت او د اهل سنت انتهائي زيات خدمت دې سړي كړې دي او دې په ډيره غټه رتبه هم پاتې شوې دي د جامع اظهر شيخ الحديث وه، د جامع اظهر د ماهانه مجلې مدير وه، او بله لويه عهده يې دا وه چې په ٥٢ اسلامي ملكونو كې د هر اسلامي ملك نه ١٢ علماء چې دا څه د پاسه ٥٠٠ علماء كيږي د تمامي دنيا علماء مشائخ به تركيا كې جمع كيدل مياشت كې يو ځل هغې ته يې مشيخة الاسلام وويلې.

ددې مشيخة الاسلام صدر چې دي علامه كوثري وه په خلافت عثماني كې نو دده په

القابو کې کتابونو کې دا راځي چې دده کتاب راشي محمد زاهد الکوثري وکيل مشيخة الاسلام بدار الخلافة العثمانية نو چې يو څوک د ټولې دنيا تقريباً څه د پاسه ٥٠٠ علماو صدر پاتې کيږي دا خو به څوک وه کنه نو ډير لوي سړې وو.

اوس دا خبره چې دا ابو جعفر خطمي مديني دي ثقة بالاتفاق دي رازي نه دي دې لپاره مونږ د نورو کتب الحديث نه اخذ کوو دغه حديث چې تاسو ته مخکې تير شو:

**اول تائيد:** امام احمد په مسند خپل کې ذکر کړي جلد ٤ صفحه ١٣٨ باندې دده سند او الفاظو ته ګوري:

حدثنا روح قال حدثنا شعبة عن ابي جعفر المديني قال سمعت عمارة.

نو امام احمد د ابي جعفر سره المديني قيد لګوي نو رازي نه شو خطمي شو خطمي چې دې مديني دي او جرحه په رازي دي نه په خطمي باندې.

**دويم تائيد:** مونږ د حاکم مستدرک نه پيش کوو جلد ٣ صفحه ٢٠٢:

حدثنا ابو العباس محمد بن يعقوب قال حدثنا عباس بن محمد الدوري قال حدثنا عثمان ابن عمر قال حدثنا شعبة عن ابي جعفر المديني قال سمعت عمارة.

په حديث نمبر ١٨٨٥ مستدرک بيا ليکي:

عن ابي جعفر المدني وهو الخطمي.

**دريم تائيد:** دارنګې امام طبراني معجم الصغير جلد ١ صفحه ٣٠٦ کې د حديث سند چې بيانوي خبره يې خلاصه کړې ده څه وايي:

حدثنا طاهر بن عيسى بن قيرس المقري المصري التميمي قال حدثنا اصبغ بن الفرج حدثنا عبدالله بن وهب عن شبيب بن سعيد المكي عن روح بن القاسم عن ابي جعفر الخطمي المديني.

ګوره دده خطمي هم کړ او مديني يې هم کړ نو ابو جعفر نه ابو جعفر خطمي مراد دي.

**څلورم تائيد:** دارنګې طبراني معجم الكبير جلد ٩ صفحه ٣٠:

حدثنا طاهر بن عيسى بن قيرس المقري المصري التميمي قال حدثنا اصبغ بن الفرج حدثنا ابن وهب عن شبيب بن سعيد المكي عن روح بن القاسم عن ابي جعفر الخطمي المدني عن ابي امامة بن سهل بن حنيف عن عمه عثمان بن حنيف .

نو هلته يې هم خطمي مديني کړ .

**پنځم تائيد** : دارنګې امام بيهقي په دلائل النبوة جلد ٦ صفحه ۳۵۲ کې سند وايي :

اخبرنا ابو عبدالله الحافظ قال حدثنا ابو العباس محمد بن يعقوب قال حدثنا عباس بن محمد الدوري وانبأنا ابو بكر واحمد بن حسن القاضي قال حدثنا ابو علي حامد بن محمد الهروي قال حدثنا محمد بن يونس قالا حدثنا عثمان بن عمر قال حدثنا شعبة عن ابي جعفر الخطمي نو امام بيهقي هم خطمي کړ امام طبراني په معجم کبير او صغير کې ابو جعفر خطمي کړ او امام احمد په مسند کې او امام حاکم په مستدرک کې ابو جعفر خطمي المديني کړ .

نو دا ټول په دې خبره دلالت کوي چې مراد د ابو جعفر نه جعفر خطمي مدني ده نه رازي .

**شپږم تائيد** : شرح د ترمذي :

بانه ابو جعفر الخطمي كما في نسخة البولاق .

د ترمذي نسخه د بولاق هم پرې ګواه دي .

مونږ سره نشته خو علامه کوثري محق التقول کې ويلې دي نو هغه سره به ضرور دا نسخه وه چې نسخه د بولاق د ترمذي کې يې هم دا قيد لږولې ده چې :

بانه ابو جعفر الخطمي .

هغه نسخه راجحه شوه چې هغې کې راغلې .

ابو جعفر هو الخطمي غير الخطمي ليس بالخطمي نه .

**اوم تائيد** : دلته په اکثرو سندونو کې شاګرد د ابو جعفر شعبه دي او د شعبه چې څومره روايات دي محدثينو کتلې د خپل شيخ ابو جعفر نه چې پيش کوي .

عن عمارة د خطمي نه پيش کوي نه د رازي نه .

ان مشائخ الشعبة الرازي والخطمي كلاهما لكن ابو جعفر عن عمارة بين الشيوخ الشعبة هو الخطمي دون الرازي .

شعبه خو د رازي هم شاګرد دي او د خطمي هم شاګرد دي خو شعبه عن ابي جعفر عن عماره راغلې دي نو شيوخ د شعبه په ابو جعفرينو کې عن عماره هغه مديني ځاي نه راځي .

كما يظهر من كتب رجال المعروف ولا يخفى ذلك على من له ممارسة في كتب الرجال والتراجم .

دليل څه دي .

لان ابا جعفر الرازي لا لقاءه لعماره . ابو جعفر رازي د عماره سره لقاء نه لري .

او په مسند احمد کې سند داسې ده :

عن ابي جعفر المديني قال سمعت عماره .

نو چې هر کله لقاء نشته نو بيا خو انقطاع راغله نو حديث ته څنګه حسن او صحيح وايي نو چې رازي دي کړ او رازي د عماره سره لقاء نه لري نو چې لقاء رانه غله په عنعنه کې سقوط راغې ځکه چې لقاء نشته روايت څنګه کوي .

او په مسند احمد کې بيا وايي : سمعت عماره ، چې لقاء نشته ، سمعت څنګه وايي نو لقاء د ابو جعفر المديني خطمي له عماره سره شته او د رازي سره نشته دي .

نو دا اوه (۷) دليله د دې خبرې شو چې دا خطمي مديني دي رازي نه دي ځکه وفات د عماره په سنه ۱۰۵ کې وفات شوې ده او وفات د ابو جعفر رازي په سنه ۱٦۰ کيده او رحلت د ابي جعفر رازي حجاز ته وروسته له وفات د عماره تقريباً نهه (۹) کاله شوې وه .

ابي جعفر رازي چې د عماره علاقې ته ورځي نو د هغه د وفات نهه (۹) کاله شوې دي .

مع ان ابا جعفر صرح بالسماع كما في رواية امام احمد ورواية الحاكم وطبراني وشرط السماع لقاء فعلم من ذلك السهو لنسختي الترمذي حيث ذكر فيها غير الخطمي وليس بالخطمي بل النسخة الصحيحة ابو جعفر هو الخطمي .

**اتم تائید** : امامانو تصریح کړې ده په تصحیح ددې سند سره څو مره امامان چې دا حدیث ذکر کوي تصحیح کوي که دا ابو جعفر رازي وي نو هغه خو سيء الحفظ ده حدیث یې صحیح نه ده نو بیا صحیح ورته څنګه وایي دا مؤید ددې ده چې دا ابو جعفر رازي نه ده بلکې ابو جعفر الخطمي مدني ده. ګوره امام ترمذي وایي :

حدیث حسن صحیح غریب .

او حسن صحیح غریب یې څنګه سره یو ځای کړل له وجهې د انفراد د عثمان ابن عمر عن شعبه نه او انفراد د ابي جعفر عن عماره صار الحدیث غریباً ، دوه ځایه تفرد راغې .

وکم من حدیث صحیحة لاجل انفراد الراوي تصیر غریب کحدیث انما الاعمال بالنیات.

صحیح دي په اتفاق لیکن غریب .

ولایخفی ذلك على من طالع الترمذي اقلاً ولوجه ...

تعدد الطرق بعد ابي جعفر وعثمان ابن عمر صار الحدیث حسناً ولوجه التفات کمال الروات في هذا السند صار الحدیث صحیحاً .

روات هر یو یې په صفاتو د کمال د راوي چې خمسه دي متصف دي نو صحیح شو .

لذا قال ترمذي هذا حدیث حسن صحیح غریب .

دارنګې امام حاکم چې حدیث ذکر کړي نو وایي :

قال حاکم هذا حدیث صحیح على شرط البخاري ومسلم ووافقه الذهبي في ذیلیه في تلخیصه .

تلخیص کې ذهبي هم بیرته غلې پاتې شوې چې حاکم ورته صحیح ویلې نو صحیح دي

دارنګې صحیح ابن خزیمه دا حدیث ذکر کړي في صحیحه او ده شرط لږولې په مقدمه کې ځان باندې چې زه به ضعیف حدیث نه راوړم .

ابن ماجه دا حدیث ذکر کوي وایي :

قال ابواسحاق حدیث صحیح .

نو دا محدثينيې چې تصحيح كوي نو دا دليل ددې دي چې مراد ابو جعفر مدني دي رازي نه دي.

او ددوي كتابونه څه وايي :

واقر الباني في كتاب التوسل صفحه ۷۰ بعد ذكر اعتراض صاحب تطهير الجنان قلت قائل الباني: لكن مدفوع ثم قال والاسناد جيد لا شبهة فيه.

د خپل يو وهابي حواله يې پيش كړې ده صاحب د تطهير الجنان وايي دې سند ته ضعيف ويلې دي الباني وايي لكن مدفوع دا اعتراض يې دفعه دي.

ثم قال والاسناد جيد لا شبهة فيه. كذا اقر البشاوري في فتاوى الدين الخالص جلد ۱ صفحه ۱۲۵: قال الشيخ اسناده صحيح.

مراد يې د شيخ نه الباني دي.

ومن ضعفه من المتاخرين فلم يصب.

نو مخكې ما ويلې وه چې بعضې متعصبينو دې سند ته ضعيف ويلې دي نو دا اول اعتراض وه.

## دويم اعتراض :

دې كې ټول منكرين د ابن تيميه تقليد كوي چې دا توسل فعلي دي قولي نه دي مخكې ما جواب وكړ چې :

فأمره أن يتوضأ فيحسن وضوءه ويدعو بهذا الدعاء.

نو هغه خپله دليل ددې ده چې دعاء خپله صحابي كړي ده او فقط رحمت عالم تعليم د الفاظو د دعاء وركړ چې دعاء د صحابي نه ثابته شوه.

او روايت د حاكم په دې دال دي چې دا په مجلس د نبي عليه السلام كې نه ده شوې بلكې دا بهر ته وتلې ده ځكه عثمان بن حنيف فرمايي :

ما طال بنا الحديث. مونږ لا خبره نه وه اوږده كړې چې هغه سړي را دننه شو.

وقد ابصره. او سترګې يې جوړې وې.

**يا ما به ضر قط**: په سترګو يې ضررر نه وه .
نو هغه ددې دليل دي چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ محضر کې يې هم نه ده کړې ځکه مسجد نبوي کې چا اودس نه کولو هغه وخت سره ده ته يې ويلې اودس وکړه هغه تلې بهر ته اودس يې کړي دوه رکعته لمونځ يې کړي بيا يې دعاء کړې ده بيا را دننه شوې نو د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه په غياب کې شوې ده .

## دريم اعتراض :

بعضې کسان دا وايي چې شاه انور شاه کشميري رَحِمَهُ اللَّهُ په فيض الباري شرحه د بخاري کې دا ويلي دي چې :

**بأن هذا التوسل هو توسل الفعلي لا القولي .**

او د ابن تيميه قول فيض الباري کې شته دي نو زه به صرف دومره ووايمه چې آيا دا به څه الزامي حجت پر مونږ جوړيږي چې هغه داسې وويل يا ابن تيميهؤ ويلي يا فلانيؤ ويلي دا خو څه الزامي حجت نه دي بس بيا هم شاه انور شاه صاحب نه زه انتهائي زيات متأثريمه د هغه د علم نه د هغه د اهل زيغ د مقابلو نه چې ډير خدمت يې کړي نو مونږ جرأت درد نه کوو په هغه باندې بلکې دومره وايو چې دده په فيض الباري کې تدافع ده دا کومه خبره يې چې کړې ده چې دا توسل فعلي دي نه قولي دا يې په دويم جلد کې کړې ده .
بيا څلورم جلد صفحه ٦٨ پاکستاني چاپ مطالعه کړي بيرته په دغه ځاى خپله رد کوي وايي :

**بأن التوسل في حديث ضرير البصر توسل قولي** .توسل په حديث د ضرير بصر کې توسل قولي دي .

**وعند الترمذي ان النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ علم اعرابيا هذه الكلمات وكان اعمى اللهم اني اسئلك واتوجه اليك بنبيك محمد نبي الرحمة اني توجهت بك الى ربي في حاجتي هذه لتقضي لي اللهم فشفعه في .**

اوس شاه انور شاه صاحب وايي :

فثبت منه التوسل القولي ايضاً وحينئذ انكار الحافظ ابن تيمية تطاوُل .

داد شاه صاحب خبره ده چې هر کله د ضرير البصر د حديث نه توسل قولي ثابت شو اوس د حافظ ابن تيميه د وسيلې انکار زبان درازي ده نو په دغه صفحه د فيض الباري کې په ابن تيميه هم رد شوې دي .

فيض القدير جلد ۲ صفحه ۱۷۰ بيروتي چاپ بعضو کې صفحه ۱۳۴ ده ، همدغه حديث ذکر کوي :

اللهم إني اسئلك واتوجه اليك بنبيك محمد صلى الله عليه وسلم .

دې باندې خبره کوي وروسته وايي :

قال السبكي ويحسن التوسل والاستعانة والتشفع بالنبي الى ربه .

وسيله استعانت تشفع په نبي عليه السلام رب کريم خپل ته جائز دي او ښه کار دي .

ولم ينكر ذلك احدٌ من السلف ولا من الخلف حتى جاء ابن تيمية فأنكر .

په سلفو او خلفو کې چا ددې نه انکار نه دي کړې تر دې چې ابن تيميه راغې ابن تيميه ددې نه .

ذلك وعدل عن الصراط المستقيم وابتدع ما لم يقله هو عالم قبله وصار بين أهل الاسلام مثله .

انکار وکړ او د صراط مستقيم نه يې عدول وکړ بدعتي شو يو نوي قول يې راپيدا کړ چې ابن تيميه نه د خلکو او مسلمانانو په مينځ کې يوه بده نمونه جوړه شوه .

همدغه حديث نه علامه مناوي شارح د جامع الصغير په فيض القدير کې توسل ثابتوي او د فقهاو عبارات نقلوي .

دارنګې شرحه د ابن ماجه جلد ۱ صفحه ۹۹ د شيخ عبد الغني فخر الحسن دهلوي رحمه الله شرحه ده همدغه حديث ذکر کوي وايي :

والحديث يدل على جواز التوسل والاستشفاع بذاته المكرم .

دارنګې تحفة الاحوذي جلد ۱۰ صفحه ۲۵ :

والحديث يدل على جواز التوسل والاستشفاع بذاته المكرم .

بيا وروسته وايي :

قال الشوكاني في تحفة الذاكرين وفي الحديث دليل على جواز التوسل برسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الى الله عزوجل مع اعتقاد ان الفاعل هو الله سبحانه .

دارنګې علامه دمشقي يو كتاب ليكلي دي داد ابن تيميه هم عصر ده :

دفع شبه من شبّه وتمرد ونسب ذلك الى السيد الجليل الإمام أحمد .

دا كتاب چې ډير سخت اوږد نوم يې ده په دې کې يې ليکلي دي چې ابن تيميه به وغيره بعضي چې د تجسيم عقيده خوروله نو دا به يې امام احمد ته منسوبوله چې داد هغه مذهب دي نو ده پرې رد وکوه په دغه كتاب کې مسئله د وسيلې ذکر کوي او بيا حديث راوړي :

فيها الدلالة على ان التوسل بالنبي عَلَيْهِ السَّلَامُ في الحاجات بعد وفاته كالتوسل به في حال حياته وهذا وامثاله يرد على هؤلاء المبتدعة الذين نبغوا في زماننا ومنعوا التوسل برسول الله .

او دده په زمانه کې څوک پيدا شوي وه ابن تيميه او ابن قيم دا خلک وه ځکه دې هم عصر دي ددوي .

دارنګې علامه كوثري محق التقول صفحه ۳ کې وايي :

اما السنة . هر چې حديث په دليل کې پيش کوم .

فمنها حديث عثمان بن حنيف وفيه التوسل بالشخص اى بالذات وصرفه عن ظاهره تحريف الكلم عن مواضعه.

ګرځول ددې دې طرف ته چې ذات نه دې مراد هغه دعاء کړې ده قولي نه ده فعلي ده وايي دا تحريف د کلمو ده د مواضع خپلو نه .

دا اول نمبر حديث وه .

دويم نمبر حديث : معجم الكبير د طبراني جلد ۹ صفحه ۱۷ :

عن ابي امامة بن سهل بن حنيف عن عمه عثمان بن حنيف ان رجلا كان يختلف الى عثمان

بن عفان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ في حاجة له .

عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته یو شخص راتللو څه حاجت یې وه .

فكان عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لا يلتفت اليه ولا ينظر في حاجته فلقي ابن حنيف .

د عثمان بن حنيف سره دغه حاجت والا ميلاو شو .

فشكى ذلك اليه . شكايت يې وكړ .

فقال له عثمان بن حنيف ائت الميضأة فتوضأ ثم ائت المسجد فصل فيه ركعتين ثم قل اللهم اني اسئلك واتوجه اليك بنبينا محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نبي الرحمة يا محمد اني اتوجه بك الى ربي عزوجل فتقضي لي حاجتي وتذكر حاجتك ورُحْ حتى اروح معك .

بیا راځه زه په درسره عثمان صاحب ته لاړ شم حاجت به دې پوره کړي .

فانطلق الرجل ، هغه سړي لاړ .

فصنع ما قال له ثم اتى باب عثمان بن عفان فجاء البواب حتى اخذ بيده فادخله على عثمان بن عفان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فاجلسه معه على الطنفسة حنيفاً فقال حاجتك فذكر حاجته وقضاها له ثم قال له ماذكرت حاجتك حتى كان الساعة وقال ماكانت لك من حاجة فأذكرها ثم ان الرجل خرج من عنده فلقي عثمان بن حنيف فقال له جزاك الله خيراً ماكان ينظر في حاجتي ولا يلتفت الي حتى كلمته فيّ.

مخکې له دې نه ، حتى كلمته فيّ ، تر څو چې تا زما سفارش وکړ .

دده دا گمان دې چې ګنې زما سفارش عثمان بن حنيف کړې ده .

فقال عثمان بن حنيف والله ماكلمته . ما ستا نوم هم ورته نه دې اخيستې ما خبرې نه دې کړي .

ولكني شهدت رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ واتاه ضرير فشكا اليه ذهاب بصره فقال له النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فتصبر فقال يا رسول الله انه ليس لي قائد وقد شق علي فقال له النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ائت الميضأت فتوضأ ثم صل ركعتين ثم ادع بهذا الدعوات قال عثمان بن حنيف فوالله ماتفرقنا وطال بنا الحديث حتى دخل علينا الرجل كانه لم يكن به قال ابن حنيف ضر قط .

نو ددوي دا اعتراض چې دا خو هغه زمانه کې شوې وه هغه حيات وه دا راوي د حديث د ترمذي عثمان بن حنيف دي دغه الفاظ د دعا چې توسل قولي په کې ده مختص يې نه کړ تر زمانې د حيات د نبي عَلَيْهِ‌السَّلَامُ پورې او د هغې زمانې بعد يې هم صحابو ته تعليم ورکړ چې دا الفاظ استعمال کړه مشکل به دې پوره شي او په دې کې د ابن تيميه او الباني هغه اعتراض هم دفعه شو چې هغوي وايي دا توسل فعلي دي .

## إيرادات :

دوي څه اعتراضات لري زمونږ په دې سند او سند د مخکني حديث دادی :

حدثنا طاهر بن عيسى بن قيرس المقري المصري التميمي حدثنا اصبغ بن الفرج قال حدثنا عبدالله بن وهب عن شبيب بن سعيد المكي .

اعتراض دا کوي :

ان في سنده شبيب بن سعيد وهو ضعيف .

په ده باندې جرحه کوي جواب دادې که تعصب کوي نو ديو امام متقن ثقه بلکه اوثق په حق کې چې جارحينو کې يو سړي قول وکړي د ضعف نو ما الحمد لله اسماء الرجال کې ډيره مطالعه کړې ده داسې روات نشته چې چا په هغه څه نا څه جرحه نه وي کړې ،ې کې به تعصب نه کيږي دې کې به د اکثرينو قول ته به کتلې شي چې اکثر جارحين ده باره کې څه وايي د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ‌اللَّهُ په حق کې ۷ جارحينو په حديثو کې د ضعف قول کړي دي او په دې ۷ جارحينو کې اکثر شيعه ګان دي نو دا خو هغه سره وران دي خامخا به پرې جرحه کوي.

بيا ۱۴ جارحين يې توثيق بيانوي نو چې د ۱۴ جارحينو قول پسې نه ځي او د ۷ جارحينو چې اکثر يې شيعه ګان دي قول پسې ځي امام شافعي رَحِمَهُ‌اللَّهُ څومره عمده دي په احاديثو کې ليکن امام نسائي جارح چې کوم دي هغه ده ته ضعيف ويلي داسې که د يو يو کس جرحې پسې مونږ لاړ شو نو بيا به دا امامان هم خلاص نه شي دا به هم بيا مجروح شي.

دا خپله امام نسائي چې کتاب يې مقبول دي په عرب او عجم کې په ده باندې جرحه د

تشيع شته دي چې دا شيعه وه كتب چې وګوري جرحه د تشيع پرې شته خو افتراء ده چا چې کړې ده بې ځايه ده ځکه فقط ده د حسنينو او د فاطمې بي بي او د حضرت علي صاحب په مدحه کې مستقل کتاب ليکلي دا سبب د جرحې د تشيع شو په ده چې ته څنګه ددې خلکو صفت کوي او د معاويه رضي الله عنه نه کوي .

نو خلکو په ده دا جرحه وکړه نو جرحه بې ځايه ده ته به تحقيق کوي که ديو کس قول پسې څوک لاړ شي نو بيا به امام نسائي هم شيعه شي اوس ائمه ددې فن چې کوم معروف دي ابوزرعة الرازي دي داد ابو حاتم رازي پلار دي ابوزرعه په محدثينو کې هغه انسان دي چې حافظ د جميع الاحاديث دي داد ټولو احاديثو حافظ وه څومره روايات چې دي ابوزرعه يې حافظ وه چې چا به حديث زده کړو او سم به پرې پوه نه وه نو چې حديث به يې صحت ته رسوه رابه غي ابوذرعه ته ده به ورته تکرار کړ دده د نظر نه به يې ويست که ده به يې تائيد وکړ نو حديث به يې مقبول وه ځکه داد کل احاديثو حافظ وه .

ابو ذرعه علي ابن مديني ابن حبان ابو حاتم رازي امام نسائي دا عمده ائمه د شبيب بن سعيد توثيق بيانوي په مختلفو الفاظو باندې .

الجرح والتعديل جلد ۴ صفحه ۳۵۹ دا ذکر کوي :

**شبيب بن سعيد ابو سعيد التميمي والد احمد بن شبيب بن سعيد البصري روى عن روح ابن قاسم ويونس بن يزيد ومحمد بن عمرو وروى عنه عبدالله بن وهب وابنه احمد بن شبيب بن سعيد سمعت ابي يقول ذلک.**

وايي : وسالته عنه ، ماد ابو زرعه نه تپوس وکړ دده باره کې :

**فقال كان عنده كتب يونس بن يزيد وهو صالح الحديث لا بأس به .**

دارنګې عبد الرحمن صاحب وايي :

**سمعت ابا زرعه يقول شبيب بن سعيد لا بأس به .**

دارنګې ابن حبان کتاب الثقات جلد ۸ صفحه ۳۱۰ کې ليکلي دي دا ټول ثقه ذکر کوي او دده نوم يې هم ذکر کړې دي .

دارنګې امام ذهبي ميزان الاعتدال في نقض الرجال جلد ۲ صفحه ۲۶۲ :

شبيب بن سعيد الحبطي البصري صدوق يغرب قال ابن مديني شبيب بن سعيد ثقة.

دارنګې ذهبي په الكاشف جلد ۱ صفحه ۴۷۹ کې ذکر کوي:

شبيب بن سعيد صدوق قال ابن مديني.

دارنګې الكامل في ضعفاء الرجال جلد ۴ صفحه ۳۰:

قال ابن مديني شبيب ابن سعيد ثقة.

دارنګې تهذيب الكمال د مذي جلد ۱۲ صفحه ۳۶۱ دي ده باره کې ليکي:

قال علي ابن مديني ثقة كان من اصحاب يونس بن يزيد كان يختلف في تجارة الى مصر وكتابه كتاب صحيح وقد كتبتها عن ابنه احمد وقال ابوزرعة لا بأس به.

وقال ابوحاتم وكان عنده كتب يونس بن يزيد وهو صالح الحديث لا بأس به وقال ابن سعيد ليس به بأس وذكر ابن حبان في كتاب الثقات ورواله البخاري وابوداؤد في الناسخ والمنسوخ والنسائي.

دوي ترې اخذ کړې ده دا اولین اعتراض وه شبيب بن سعيد باندې چې دا ضعيف دې مونږ ترې نه جوابونه وکړل چې جرحه بې ځايه ده.

دويم اعتراض الباني کړې په توسل کې: په کتاب التوسل کې يې ويلي:

يمكن ان يكون من خصوصياته عليه السلام.

وايي دا ممکنه ده چې دا دې د رسول الله صلى الله عليه وسلم خصوصيت وي هغه دې دا تعليم ورکړې وي بل چا ته دې دا جائز نه وي.

ويكون مختص بذلك الرجل ضرير البصر فلا يعم لعامة الناس.

ددې نه جواب شوې ده چې دا عامة الناس ته جائز نه وايي نو راوي د حديث عثمان بن حنيف زمانه د عثمان ذي النورين رضي الله عنه کې دي بل صحابي ته ولې تعليم ورکوي دا اعتراض الباني کړې ده او روايت د عثمان بن حنيف پرې رد کوي چې ده ولې بل صحابي ته تعليم ورکوه خو دده په نزد تخصيص نه وه ترزمانې د نبي عليه السلام پورې يا تر دغې ضرير

البصرپورې.

بل د تخصيص دا دعوى ددوي باطله ده ابوبكر بن أبي خيثمه په تاريخ كې هم دا حديث ذكر كړې ده او آخري يې دادى:

**وان كانت حاجتاً فافعل مثل ذلك.**

كه څه ضرورت دې وه نو داسې كار بيا كوه هغه الفاظ چې ابوبكر بن خيثمه په تاريخ كې زيات كړې دي دليل د تعميم دي چې دا تر ضرير البصرپورې خاص نه وه هرچا ته چې مشكل پېښ شي دا الفاظ دې ووايي.

## دريم دليل:

مصنف ابن ابي شيبه جلد ۷ صفحه ۱۴۸۲ او بيروتي چاپ جلد ٦ صفحه ۳۵٦:

**حدثنا ابومعاوية عن الاعمش عن ابي صالح عن مالك الدار قال وكان خازن عمر على الطعام قال اصاب الناس قحط في زمن عمر.**

داد عمر فاروق رضي الله عنه په دورِ خلافت كې د خزانې وزير وه په زمانه د حضرت عمر رضي الله عنه قحط خلكو ته ورسيده.

**فجاء رجل الى قبر النبي صلى الله عليه وسلم فقال يا رسول الله صلى الله عليه وسلم استسق لأمتك فانهم قد هلكوا.**

راغې يو سړي قبر د نبي عليه السلام ته وي ويل يا رسول الله باران وغواړه د خپل امت لپاره دوي هلاک شو.

**فاتى الرجل في المنام فقيل له ائت عمر فاقرئه السلام.**

راغې نبي عليه السلام ده ته په خوب كې ورته وي ويل ورشه عمر رضي الله عنه ته سلام ووايه.

**واخبره انكم مستقيمون، اى مستسقون.**

يعني په تاسو به باران كيږي او دغه باران مؤرخينو ليكلي چې بيا وشو.

اوس دلته د مشكل په وخت كې د نبي اكرم صلى الله عليه وسلم روضې ته تلل او د هغه نه استشفاع د دنيا د مشكل د پاره ثابتيږي چې دا جائز ده.

## إيرادات :

ابن تيميه او ابن قيم وغيره ټولو دا اعتراض كړې ده چې په سند ددې روايت كې مالك الدار ده وكان مجهول الحال او داسې نه ده او نه مجهول العدالة ده يو سړى چې دأمير المؤمنين عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په زمانه كې وزير خزانه وي هغه به څنګه عادل نه وي عدالت د عمر فاروق څومره معروف دي .

او مصنف ابن ابي شيبه ذې وايي :

كان خازن الطعام . دا په طعام مقرر وه .

نوم څه شي دي .

اسم مالك عيسى بن عبدالله بن مالك الدار بن عياض العمري مولاهم قيل عبدالله بن عيسى وهو وهم .

د طبقې ثالثې نه دي .

رواله ابوداؤد ونسائي في عمل يوم والليلة وابن ماجة .

رتبه يې په نزد د ابن حجر عسقلاني مقبوله ده وعند الذهبي ثقة .

الاصابة في معرفة الصحابة جلد ۳ صفحه ۴۶۱ د مالك الدار حالات ذكر كوي دا حديث هم وركې ذكر كوي :

وذكر ابن سعد في الطبقة الاولى من التابعين في اهل المدينة روى عن ابي بكر وعمر .

د حضرت ابوبكر او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت د حديث لري .

وكان معروفاً . او دا معروف انسان وه .

نو ددوي دا اعتراض چې مجهول دي بې ځايه دي .

دارنګې طبقات الكبرى د ابن سعد جلد ۵ صفحه ۱۲ كې ذكر كوي چې :

روى مالك الدار عن ابي بكر صديق وعمر رَحِمَهُمَا اللهُ روى عنه ابوصالح السمان وكان معروفاً . مجهول نه وه معروف وه .

## دویم اعتراض :

حدیث کې مخکې چې مالك الداري راوي وه تیر شو : جاء رجل الى قبر النبي ﷺ، یو سړي راغی نو دا سړي وایي څه پته لږي چې دا صحابي وه که تابعي که تابعي وي نو بس وایي بد یې کړي دوي خو بې آدبه دي کنه دي کې خو دا نه معلومیږي چې دا عمل صحابي کړې ده.

ددې اعتراض جواب ابن حجر عسقلاني په فتح الباري جلد ۲ صفحه ۴۹۵ کې کړې دي.

روی ابن ابي شیبة باسناد صحیح من روایة ابي الصالح السمان عن مالك الدار وكان خازن عمر رضي الله عنه.

هغه حدیث ذکر کوي :

وقد روی سیف في الفتوح ان الذي رأی المنام المذکور هو بلال ابن الحارث المزني احد الصحابة.

دارنګې علامه سهمودي په وفاء الوفاء جلد ۴ صفحه ۱۳۷۴ ددې اعتراض په جواب کې ذکر کوي :

وروی سیف في الفتوح ان الذي رأی المنام المذکور هو بلال بن حارث المزني أحد الصحابة.

## دریم اعتراض :

وايي دا تاسو چې د سیف نه نقل کوي چې سیف په فتوح کې ؤ ویلي چې دا بلال بن حارث مزني دي وايي السیف ضعیف ، دا خپله سیف ضعیف دي.

**جواب :** مونږ تپوس دا کوو چې سیف په تاریخ کې ضعیف دي که په حدیثو کې ضعیف دي که وايي چې په حدیثو کې ضعیف دي نو مونږ حدیث د مصنف ابن ابي شیبه نه نقل کړي د سیف نه مو نه ده نقل کړې او د ابن ابي شیبه نه ۳۸ احادیث امام بخاري په بخاري

کې نقل کړي دا شیخ د بخاري دي ، او دا شیخ د امام مسلم هم ده د نسائي ابي داؤد د ټولو شیخ دي مونږ حدیث له هغه نه نقل کوو چې ته جرحه پرې کوي.

پاتې شوه یوه تاریخي جزیه چې دا رجل څه نومیږي نو د رجل د نوم باره کې چې دا یو تاریخي مسئله ده مونږ د سیف د فتوح نه اخذ وکړ او د تاریخ په باب کې سیف قوي دي د سند او حدیثو په لحاظ کې ضعیف دي .

تقریب التهذیب جلد ۱ صفحه ۲۶۲ دا ذکر کوي :

سیف بن عمر التمیمي صاحب کتاب الرداء یقال الضبي یقال غیر ذلك الکوفي ضعیف الحدیث عمدة في التاریخ .

نو دې په تاریخ کې ثقه ده مونږ ده نه حدیث نه نقلوو د یو تاریخي رجل نوم ترې زده کوو چې دده رجل نوم څه شي دي .

همدغه عبارت صاحب د تحفة الاحوذي جلد ۱۰ صفحه ۲۴۹ کې نقلوي چې سیف بن عمر ضعیف دي په حدیثو کې عمدة في التاریخ .

## څلورم اعتراض :

د بلال بن حارث مزني دا عمل چې د نبي عليه السلام روضې ته راغې داستسقاء دعاء کوي نو اعتراض دا کوي وایي دا حدیث معارض دي د روایات معروفه ؤ و د استسقاء نه وایي چې مونږ په استسقاء کې ډومره احادیث کتلي مونځ شوې دي یا دعاء شوې ده قبر ته تلل نه دي شوي نو دا حدیث د استسقاء د معروفو طریقو مخالف دي .

**جواب :** ډومره روایات چې په معروفو طریقو د استسقاء کې ذکر دي هغه استسقاء په هیئت اجتماعي سره ده یا انفرادي سره هر چې استسقاء ده په هیئت انفرادي سره هغه چې هر ځای کې شوې ده په دعاء سره شوې ده او توسل هم له باب د دعاء نه دي نو هیڅ مخالفت نشته .

کوم احادیثو کې چې صلاة راغلې هغه هیئت داستسقآتو اجتماعیه وو بیانوي او کوم چې مونږ بیان کړ دا هیئت د استسقاء انفرادي بیانوي نو دعاء د خالق نه وغواړه وسیله په کې څوک پیش کړه معارضه نشته .

## ثلورم حدیث :

سنن الدارمي جلد ۱ صفحه ۱۰۹ باب ما اکرم الله تعالی نبیه بعد موته .
خدای تعالی نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته وروسته له وفات څخه څومره عزت ورکړي .
نو په هغې کې دا حدیث ذکر کوي چې دده قبر مبارک کله آسمان ته وښودلې شو نو باران وشو امام دارمي دا ذکر کوي چې بعد الوفات دا خدای تعالی ته څومره ګران دي دده قبر له وجهې باران کوي . سنن الدارمي جلد ۱ صفحه ۵۶ . بیا حدیث ذکر کوي :

حدثنا ابو نعمان قال حدثنا سعید بن زید حدثنا عمرو بن مالك النكري حدثنا ابو الجوزاء اوس بن عبدالله قال قُحِطَ اهل المدينة قحطاً شديداً .

سخت قحط راغې اهل مدینه وو باندې .

فشكوا الى عائشة فقالت . صحابه کرام شکایت کوي عائشې بي بي ته هغه جواب ورکوي :

انظروا قبر النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ قبر ته وګورئ .

فاجعلوا منه كِوىً الى السماء . بیا وګرځوي دغه قبر نه کړکي طرف د اسمان ته .

كِوى هغه روشندان چې طرف د آسمان ته مائله وي .

حتى لا يكون بينه و بين السماء سقف . چې د آسمان او د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په مینځ کې چت پاتې نه شي یعنې دا قبر آسمان ته ښکاره کړي .

قال ففعلوا فمطرنا مطراً . راوي وایي دا کار مونږ وکړو په مونږ باران وشو .

حتى نبت العشب . تردې چې ګیاګانې شنې شوې .

وسمنت الابل . او ښان چاغ شول .

حتى تفتقت من الشحم . تردې چې په مرض د فتق ککړ شول د وازدو نه .

فسمي عام الفتق . نامداره شو دغه کال په کال فتق باندې .

نو دا دومره باران څکه وشو قبر مبارک د نبي عليه السلام آسمان ته ښکاره شو دا باب د توسل دي دوي دا شاته په مشکلاتو کې قبر ته تلل شرک ګڼي او بي بي عائشه رضي الله عنها د مشکل په وخت کې صحابه کرام ماموره وي په ذهاب الى قبر النبي صلى الله عليه وسلم باندې.

## الإيرادات :

ددې مخکني حديث په سند کې سعيد بن زيد راغلې ده باندې دوي جرحه کوي چې دا ضعيف دي امام نسائي دې ضعيف ګڼلې.

جواب له دې اعتراض به دا وي چې جرحه د امام په حق د يو رجل کې کله جرحه مفسره وي کله غير مفسره وي اصولين دا ذکر کوي چې جرحه غير مفسره مقبوله نه ده بيا په هغه وخت کې چې توثيق د بعضې الائمه وو نه ثابت شي نسائي ابي حاتم رازي دار قطني دري واړو په سعيد بن زيد باندې څه جرحه کړې ده د ضعف خو غير مفسره وجه او علت يې نه دي ښودلي.

ابن حجر رحمه الله په حق کې صدوق ليکلي او يحيى ابن معين ورته ثقه وايي.

نو اوس ته د نورو امامانو اقوال په حق د سعيد بن زيد کې واوره چې څه وايي:

قال الإمام احمد بن حنبل لا بأس به قال يحيى ابن معين ثقة قال الامام البخاري صدوق حافظ قال ابن سعد ثقة قال العجلي ثقة.

قال الامام ابوزرعة ثقة. قال امام ابوجعفر دارمي ثقة قال ابن عدي ليس لسعيد بن زيد حديث منكر تفرد به.

داسې روايت به يې څوک ونه ښايي چې منکر وي يوازې ده پرې راتله کړې وي.

قال ابن حبان صدوق حافظ.

داد ائمه وو اقوال وه، تهذيب التهذيب جلد ۴ صفحه ۲۹ کې ذکر کړي دي: د چا چې دومره ائمه توصيف بيانوي بيا د دري جارحينو جرحه چې غير مفسره ده څه اعتماد پرې کيدې شي.

## دويم اعتراض :

اعتراض دا کوي چې دا شيخ د دارمي چې ده :

ابونعمان محمد بن فضل عارم السدوسي ابونعمان بصري من رجال البخاري و مسلم ثقة بالاتفاق واختلط في آخري عمره .

مختلط في آخر عمره دي .

يو راوي چې ثقه شو شيخ الکل شو بيا اوثق شو بيا آخر د عمر کې اختلاط پرې راغې محدثين بيا دده روايات ګوري چې قبل الاختلاط روايات وي مقبول يې ګڼي او چې بعد الاختلاط وي مقبول يې نه ګڼي دده باره کې د دارقطني رايه داده چې :

لم يظهر له بعد اختلاطه شيء منكر .

وروسته له اختلاط نه هم چا ترې حديث منکر نه دي اوريدلې .

او دويم دا چې امام ذهبي رَحِمَهُ اللهُ وايي چې کله اختلاط پرې راغې نو ده درس بيا نه دي کړي .

نو په رأي دامام ذهبي ليس له روايات بعد الاختلاط .

او په رايه د دارقطني روايات بعد الاختلاط شته خو منکر روايت نه لري .

نو اوس ګورو چې امام دارمي دده شاګرد وه قبل الاختلاط وه که بعد الاختلاط :

الکواکب النيرات جلد ۱ صفحه ۷۴ ابوالبرکات الذهبي شافعي يې ذکر کوي وايي چې :

امام الدارمي روا عنه قبل الاختلاط .

امام دارمي ترې روايات مخکې له اختلاط نه کړي هغه شاګرد د ابونعمان امام محمد بن فضل قبل الاختلاط دي بيا نو څه جرحه شوه .

او دغه امام ابونعمان محمد بن فضل قبل الاختلاط استاد د امام بخاري ده څه کم څلويښت احاديث يې ترې روايت کړي نو ثقه څه چې اوثق ده .

## دريم اعتراض :

**هذه من اجتهادات عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فلا يلزم علينا اقتداء عائشة في أراءها الاجتهادية.**

دا اعتراض الباني کړې دي په توسل باندې ، ددې نه مونږ دوه جوابونه کوو :

اول جواب دا چې مسئله د توسل اعتقاديا تو نه ګڼي که د اجتهاداتو نه ، اجتهاد خو په عقيده کې نه کيږي په مسئله فرعي کې کيږي داد مسئلې فرعي عملي نه ، نه ګرځوي ؟ که د مسائل اعتقادي نه ګرځوي ؟ که دا چيرته د مسائلو عملي فرعي نه ګرځوي نو آيا په يو عمل کې مسئله فرعي عمل کې هم کفر شرک لازميږي لکه دوي چې فتوی د کفر او شرک کړې دي.

په مسائلو اجتهاديه فرعيه وو کې بيا شرک څنګه لازم شو او که داد اعتقاداتو نه وي نو اعتراض بيا نه صحيح کيږي چې دا اجتهاد له چا نه دي په عقيده کې خو اجتهاد نه کيږي اجتهاد خو په عمل فرعي کې کيږي .

دويم جواب دا چې صاحبانو تاسو قائلين د څه يې ، دې ته شرک وايي د عائشې بي بي تقليد کوي او که نه يې کوي نو اوس چې تا قول کړي چې شرک دي زه غلام حضرت معلم خلکو ته د توسل د ذواتو فاضله يم مشرک راته وايي او که نه يې وايي بلکې اعلی د مشرکينو را ته وايي ما ته تعليم ددې امام دارمي راکړې زه چې معلم خلکو ته توسل بذوات فاضله شوم عظيم مشرک شوم ددوي په فتوی نو ماته تعليم ددې امام دارمي راکړي .

نو زما تپوس دوي نه دا دی چې امام دارمي لوي مشرک دي که نه چې هغه ما ته دا تعليم راکړي .

او دويم تپوس مې ترې دا ده چې امام دارمي ته او دې صحابه وو ته به د غه مسئله کې معلمه بي بي عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا وه نو تاسو خو دې عمل ته شرک وايي بي بي عائشه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا ستاسو په فتوی څنګه شوه ؟

## څلورم اعتراض :

ابن تيميه کړي او دوي د هغه تقليد کړي وايي دا روايت چې دوي سوري کړي آسمان ته وايي دې کې کذب دي ځکه چې وايي :

**في مدة حياة عائشة لم يكن للبيت كيوة .**

دې کوټه کې واې سوري نه وه څکه واې په روايت د بخاري کې راځي:

لم تزل الحجرة كذلك حتى زاد الوليد بن عبد الملك في المسجد.

حجره همدغسې وه ترڅو پورې وليد بن عبد الملک زيادت په مسجد کې وکړ نو تغير په کې راغې.

جواب دادی چې د بخاري د خبرې دا مقصد نه دي چې د عائشې بي بي په کوټه کې چا کهړکي نه ده جوړه کړې اصلاً دغه وخت عبد الملک د زيادت د مسجد نبوي پورې حجره د عائشي بي بي د مسجد نه بهر وه کله چې زيادت په مسجد کې راغې په زمانه د عبد الملک بن مروان کې حجره داخل المسجد وګرځيده دا تغير يادوي چې دا داخله وه که خارجه وه.

زمانه د خلافت د صحابه کرامو کې دا خارجه وه او په وخت د عبد الملک بن مروان کې داخله في المسجد شوه.

نور حديث د بخاري ساکت ده چې د هغې په دروازه کې چا کار کړي يا نه يا چت کې او کهړکي کې کار شوې او کنه دې نه هغه ساکت دي.

## پنځم حديث:

سنن ابن ماجه جلد ۱ صفحه ۵۷:

حدثنا محمد بن سعيد بن يزيد بن ابراهيم التستري حدثنا الفضل بن الموفق ابو الجهم حدثنا فضيل بن مرزوق عن عطية عن ابي سعيد الخدري قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم من خرج من بيته الى الصلوة.

څوک چې کور نه بهر شو لپاره د مانځه.

فقال اللهم اني اسئلك بحق السائلين عليك واسئلك بحق ممشاي هذا.

سوال درنه کومه په حق د دعاء کوونکو باندې او سوال درنه کوم په وسيله زما د دغه ښه مزل باندې چې مانځه ته دي.

ممشاء مصدر ميمي دي نو ګوري په حق د عمل هم وسيله شوه او حق سائلين دا دعاء کوونکي دي دا ذات دي نو هم په حق د ذات سره دعاء ده هم په حق د عمل سره چې ممشاء ده.

فاني لم اخرج اشرا ولا بطراً ولا رياء ولا سمعة وخرجت اتقاء سخطك وابتغاء مرضاتك

فاسألك ان تعيذني من النار وان تغفر لي ذنوبي انه لا يغفر الذنوب الا انت اقبل الله عليه بوجهه واستغفر له سبعون الف ملك .

خدای تعالی دې رانه راضي شي متوجه شي ورته او اویا زره فرښتې دده لپاره مغفرت دعاء شروع کړي کوم څوک چې کور نه بهر شي د مسجد په خوا او دا دعاء وکړي نو حق د سائلینو ذوات او حق ممشاي عمل شو .

## إيرادات :

سند ته چې وګوري نو دابو سعید خدري رضي الله عنه شاګرد عطیه دده باندې اعتراض کوي چې دې ضعیف دی .

جواب دادی چې یحیی ابن معین دده په حق کې لیکي :

حديث العطية صالح . ميزان الاعتدال جلد ۳ صفحه ۸۰ :

امام عجلي په کتاب الثقات کې لیکي :

عطية العوفي كوفي تابعي ثقة . ثقات د عجلي جلد ۲ صفحه ۱۴۰.

دویم جواب دادی چې عطیه متفرد نه دی په روایت د ابو الحکم بن ذکوان کې عن ابي الصديق عن ابي سعيد الخدري نو دا ابو صدیق چې شاګرد د ابو سعید خدري دی متابع وګرځیده لپاره د عطية العوفي نو تفرد رانغي دده لپاره متابع پیدا شو توثیق یې وشو درجې د حسن لغیره ته رسي دغه وجه ده چې ائمه دده حدیث ذکر کوي نو حسن یې ګڼي .

حافظ منذري په ترغيب الترهيب جلد ۲ صفحه ۳۰۵ کې ذکر کوي : دغه حدیث او بیا وایي :

وحسنه الشيخنا الحافظ ابوالحسن رحمه الله . دا حدیث زمونږ شیخ حسن ګڼلي دی .

دارنګې حافظ عراقي في تخريج احاديث الاحياء جلد ۳ صفحه ۹۰ کې احیاء العلوم باندې چې کوم تخریج شوې دی حافظ عراقي کړې دی او ډیر معتمد دی او سني تخریجونه اکثر د تعصب نه ډک وي هغه متعصب نه دی د پخوانو علماو نه دی هغه دا حدیث ذکر کوي بیا وایي :

من حديث ابي سعيد الخدري باسناد حسن .

او حسن د مقبولاتو نه دي .

## شپږم حديث :

ابن السني في العمل اليوم والليلة کې ذکر کړي جلد ۱ صفحه ۱۵۹ د دې فرق له هغه حديث سره په قوليت او فعليت کې دي روايت د ابن ماجه قولي دي نبي عليه السلام قول خلکو ته داسې وايي چې کهٔ چا داسې الفاظ وويل نو فرشتې به ورته دعاء غواړي .

دا حديث فعلي دي نبي اکرم صلى الله عليه وسلم د کور نه راووځي خپله دا دعاء کوي :

حدثنا ابن منيع قال حدثنا حسن ابن عرفة قال حدثنا علي ابن ثابت الجزري عن الوازع بن نافع العقيلي عن ابي سلمة بن عبد الرحمن عن جابر بن عبد الله عن بلال مؤذن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال كان رسول الله صلى الله عليه وسلم : اذا خرج الى الصلوة .

کله به چې نبي عليه السلام راوته مانځه ته ، قال : ويل به يې :

بسم الله آمنت بالله توكلت على الله لاحول ولا قوة الا بالله اللهم بحق السائلين عليك وبحق مخرجي هذا .

باقي مخکې حديث کې چې کوم الفاظ ذکر شو همغه الفاظ دلته هم دي نو دا حديث فعلي دي بلال صاحب وايي چې هلته ابو سعيد خدري راوي ده دا بلال صاحب راوي ده هغه قولي روايت دا فعلي روايت دي داد دليل لپاره بل روايت شو .

## اووم حديث :

معجم الكبير جلد ۸ صفحه ۳۱۶ دا هم همغه الفاظ دي فعلي روايت دي فرق يې دا دی چې دلته راوي ابو امامة الباهلي دي هلته راوي بلال مؤذن وه هلته الفاظ دا دي چې کله د کوره راوتو هر مانځه سره يې دا دعاء کړي دلته الفاظ دا دی چې صباء کې او بيګا کې به يې دا دعاء کوله :

عن ابي امامة الباهلي قال كان رسول الله صلى الله عليه وسلم اذا اصبح وامسى دعا بهذا الدعوات .

صبا او بيګا به يې دا دعاء کوله الفاظ د هغې نه جدا دي :

اسئلك بنور وجهك الذي اشرقت له السموات والارض بكل حق هو لك وبحق السائلين عليك .

الفاظ پوره جدا دي هغې نه :

ان تقبلني في هذه الغداة او في هذه العشية وان تجيرني من النار بقدرتك .

ددې په سند کې عطيه راغلي دي هغه جرحه چې مخکې شوې ده جواب يې مخکې د ابن ماجه په حديث کې ذکر شو .

تاسو سره چې د ابن ماجه قولي حديث په دغه مضمون پروت دي چې :

اسئلك بحق السائلين عليك :

دې کې يوه سندي جرحه شوه ، دويم يوه علمي جرحه کړي ده الباني هغه جرحه داده چې دا عطيه چې وه د کلبي مفسر سره ناسته کوله او دا کلبي مکناوه په ابو سعيد باندې نو دا عطيه د ابو سعيد خدري شاګرد وه چې صحابي وه هغه چې وفات شو د شاګردي د کلبي اختيار کړه نو ده به حديث بيان کړ عن ابي سعيد نو خلکو به ګمان کوه چې ابو سعيد خدري يادوي هغه به کلبي وه دده مقصد به ابو سعيد نه کلبي وه خلکو به ترې نه ابو سعيد خدري جوړ کړ نو دا وهم وايي دلته باقي ده چې دا حديث دې د ابو سعيد کلبي نه شي نو شو حديث د مراسيلو نه ابو سعيد کلبي خو تابعي دي هغه څنګه مونږ ته د نبي عليه السلام قول او فعل پيش کوي .

نو دغه اعتراض بې ځايه دي تعصب دي هسې يو تش وهم پسې ځي او د ابن ماجه تقيد د خدري پسې نه ځي چې دا سې او هام ابن ماجه راغوند ولې نو بيا يې کتاب ولې مقبول شو په امت کې صحاح سته وو نه بيا څنګه وګرځيده نو په تقيد د خدري سره کلبي بهر شو .

مسند احمد جلد ۳ صفحه ۲۱ کې همدا حديث ذکر کيږي يزيد شاګرد دي د فضيل بن مرزوق هغه شاګرد د عطية العوفي دي هغه د ابو سعيد خدري دي دا يزيد وايي :

قلت لفضيل رفعه . ما دې خپل استاد فضيل ته وويل چې تاته ستا شيخ عطيه حديث مرفوع پيش کړي؟

قال احسبه قد رفعه .

او گمان کوم مرفوع یې پیش کړي دي نو دا به مرفوع کله جوړیږي چې دا کله ابوسعید کلبي وي بیا خو مرسل ده کنه نو چې ابوسعید خدري نه شي او متصل تر نبي علیه السلام نه شي نو څنګه دې ته مرفوع بیا وایي.

دارنګې مسند ابن الجعد جلد ۴ صفحه ۳۳۷ هغې کې هم دا یزید سوال کوي:

**فقلت لفضيل رفعه.**

شیخ عطیه درته دا حدیث مرفوع کړ.

**قال احسبه قد رفعه.**

گمان کوم مرفوع یې ویلي دي.

دغه حدیث کتاب الدعاء د طبراني هم را اخیستي جلد ۱ صفحه ۴۳۱ کې.

امالي د ابن بشرام را اخیستي دي جلد ۲ صفحه ۳۰۷ کې.

مسند احمد بن حنبل جلد ۳ صفحه ۲۱ کې را اخیستي دي.

دعاوات کبیر د بیهقي را اخیستي جلد ۱ صفحه ۷۲ کې

مسند ابن الجعد را اخیستي جلد ۴ صفحه ۳۳۷ کې

عمل الیوم واللیلة د ابن سني را اخیستي جلد ۱ صفحه ۱۶۱ کې.

دې ټولو دا حدیث ذکر کړي ده.

د ابن ماجه د دغه حدیث په سند کې فضیل بن مرزوق راغلې دي شاګرد ده د عطیه د یزید شیخ دي.

نو بل اعتراض دا کوي چې فضیل بن مرزوق ضعیف.

**فضيل بن مرزوق الاغر الرقاشي ابو عبد الرحمن الكوفي مولى بن عنزة من الطبقة السابعة في كبار أتباع التابعين رواله البخاري في جزء رفع اليدين ومسلم وابوداؤد وترمذي ونسائي وابن ماجه.**

دا ټول یې شاګردان دي او امام بخاري په بخاري کې ترې روایت نه کوي خو په جزء رفع الیدین کې ترې روایت لري.

اوس دده باره کې علماء څه وایي تهذیب الکمال جلد ۲۳ صفحه ۳۰۷ کې د ائمه وو

اقوال د فضيل بن مرزوق متعلق :

قال سفيان الثوري فضيل بن مرزوق ثقة قال ابن عيينة فضيل بن مرزوق ثقة قال احمد بن حنبل لا اعلم به الا خيراً قال يحيى بن معين ثقة قال ابن عدي لا بأس به قال يحيى بن معين صالح الحديث ذكره ابن حبان في الثقات ذكره العجلي في الثقات .

دې ټولو ده ته ثقه ويلي دي او په كتاب الثقات كې عجلي او ابن حبان ذكر كړي .
حواله د كتاب الثقات د ابن حبان جلد ٧ صفحه ٣١٦ او حواله د كتاب الثقات د عجلي جلد ٢ صفحه ٢٤٨ .

او باقي روايت دائمه وو چې كوم دي كاشف د ذهبي تهذيب الكمال الجرح والتعديل دي كتب نقل كړي .

د مرګ او د ژوند پته نه لګي ما د اځل اراده د كورس مناظرې ډيره طولاني تفصيلي كړې ده تاسو تنګيږي كه خوشحاليږي دا ځل به د ريكاډ د پاره هم زه دا تفصيلي كوم د توسل مسئله نور كله څلور (۴) ګينټې وه دا ځل اته (٨) ګينټې ته رسي .

## اتم حديث :

معجم الكبير للطبراني جلد ٢۴ صفحه ٣٥٢ دا حديث معجم الاوسط هم ذكر كړي جلد ١ صفحه ٦٧ :

حدثنا احمد بن حماد بن زغبة حدثنا روح بن صلاح حدثنا سفيان الثوري عن عاصم الاحول عن انس بن مالك قال لما ماتت فاطمة بنت اسد بن هاشم ام علي بن ابي طالب دخل عليها رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فجلس عند رأسها .

فاطمه بنت اسد چې وفات شوه نبي اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورغې سر ته يې كيناسته .
فقال رحمك الله يا امي كنتِ امي بعد امي وتشبعيني وتعرين وتكسيني وتمنعين نفسك طيباً وتطعميني تريدين بذلك وجه الله والدار الآخرة .

دې د نبي عَلَيْهِ السَّلَام خدمت كړې وه ماشوم توب كې نبي عَلَيْهِ السَّلَام ورته وويل رحم دې وكړي الله تا باندې ته به وږې وې زه په دې مړولم ته به جامو نه كمزورې وې زه به دې پټولم تا

به خپل ځان نه بنکلي طعام لرې کړ خوزه به دې مور کړم په دې تولو کارونو کې ستا مقصد د رب کريم رضا والدار الآخرة وه هغه وفات وه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ورسره خبرې کولې.

ثم امر ان تغسل ثلاثاً فلم بلغ الماء الذي فيه الكافور سكبه رسول الله ﷺ بيده

ثم خلع رسول الله ﷺ قميصه فالبسها اياه.

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ خپل قميص وويست دې ته يې ورواغوست.

وكفنها ببرد فوقه.

له پاسه يې پرې بل څادر هم د كفن لپاره ورواغواست او هغه خپل قميص مبارك يې لاندې تنې مباركې د هغې سره ولږوه.

ثم دعا رسول الله ﷺ اسامة بن زيد وابا ايوب الانصاري وعمر بن الخطاب وغلاماً اسود يحفرون. چې قبر وكني.

فحفروا قبرها فلما بلغوا اللحد حفره رسول الله ﷺ بيده واخرج ترابه بيده.

په خپلو لاسونو مباركو يې خاورې ترې راوويستې.

فلما فرغ دخل رسول الله ﷺ فاضطجع فيه ثم قال: الله الذي يحيي ويميت وهو حي لا يموت اغفر لامي فاطمة بنت اسد. زما مور ته بخښنه وكړه.

ولقنها حجتها. دليل ورته تلقين كړه.

ووسع عليها مدخلها. قبر ورته فراخه كړه.

بحق نبيك والانبياء الذين من قبلي. په حق زما باندې او د هغو انبياو په حق چې زما نه مخكې تير شوې دي.

داد نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ بالفعل توسل په خپل ذات او په كل انبياء عَلَيْهِ السَّلَامُ په دعاء كې.

وكبر عليها اربعاً وادخلوها اللحد هو والعباس وابوبكر الصديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ.

هسې چې څوک مؤمن وي سند قوي دي ضعيف دي دا دومره محدثين يې كتبو كې را اخلي نو دې به جرأت وكړي چې دې ته شرک ووايي يا حرام او بدعت ورته ووايي چې هسې

لړزه د ايمان په کې وي دې به ونه ويريږي چې دا خو په حديث کې د محمد مصطفى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه ثابت ده زه نا روا ولې ورته ووايم .

## إيرادات :

اول اعتراض دا کوي چې سند ددې حديث کې روح بن صلاح راغلې دي نو اعتراض کوي چې روح بن صلاح ضعيف دي ، تضعيف يې چا کړي ابن عدي او دار قطني کړي دي .

جواب به همغه وي چې مخکې ما تاسو ته وويل چې جرحه ددې غير مفسره ده سره ددې نه ابن حبان په کتاب الثقات جلد ۸ صفحه ۲۴۴ کې دده نوم را اخيستي او دې يې ثقه ګانو کې شمار کړي .

دارنګې امام حاکم دده باره کې ليکي :

**ثقة مامون .**

دويم اعتراض دوي دا کوي چې **بحق نبيك** وايي دا وسيله نه ده ځکه وايي حق د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په خداى تعالى باندې استجابت د دعاء دده ده .

په دوه طريقو به جواب دې اعتراض نه کوو : چې هر کله بحق فلان ته ته توسل نه وايي نو بيا په مورد د توسل باندې خو يوه جزيه پيدا کړه فقه کې خو **لا ينبغي ئسال بحق فلان** راغلې بوسيلة خو نه دي راغلې او **بحق فلان** ته ته وسيله نه وايي چې نه يې وايي او جائزيې ګڼي نو د هدايه عبارت په رد کې ولې پيش کوي .

دويم دا چې دوي وايي **بحق فلان** چې دا استجابت د دعاء ده دلته راغلو **بحق نبيك والانبياء الذين من قبلي** څه نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سره به دا قيد ولړوي چې حق يې استعانت د دعاء دي دا نور انبياء خو دنيا نه تللي وه کنه ولې په حيات برزخي کې د دعاء قائل يې ته چې ګڼې انبياء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ په قبورو کې چا ته دعاء کولې شي دا ستا رأيه ده دا خو دې ستا رأيه نه ده او بيا دا لازميږي ورنه چې ته ترې توسل فعلي دعاء ثابتوي استجابت د دعاء نو دا به مني چې دې نور وانبياء په قبورو کې بي بي فاطمې ته دعاء کړي ده او دا خو ددوي رأيه نه ده .

ددې نه خو لويه پيچيده بله مسئله ثابتيږي نو دوي اصول نه لري جمهور نه دي ځان نه

را پیدا شوي خلک دي او خبرې یې شروع کړي چې د تناب یو سر راټینګ کړي بل طرف ترې خلاص شي .

## نهم حدیث :

کتاب الدعاء د طبراني جلد ۱ صفحه ۳۹۷ کې ذکر کوي :

حدثنا یحیی بن ایوب العلاف المصري حدثنا ابوطاهر بن السرح حدثنا ابومحمد موسی بن عبدالرحمن الصنعاني المفسر حدثني ابن جریج عن عطاء عن ابن عباس رضي الله عنه عن النبي صلی الله علیه وسلم قال ح وحدثنا مقاتل بن حیان عن مجاهد عن ابن عباس رضي الله عنه عن النبي صلی الله علیه وسلم قال من سره ان یوعیه الله عزوجل حفظ القرآن .

د چا دا خوښه وي چې خدای تعالی ده ته په ذهن کې واچوي حفظ قرآن .

وحفظ اصناف العلم . او د علم انواع ورته په حافظه کې واچوي .

فلیکتب هذا الدعاء .دا دعاء دې ولیکي .

في اناء نظیف .په پاک لوښي کې

او في صحفة قواریر : او یا په کاسه د شیشې کې .

بعسل وزعفران . په شهدو او زعفرانو سره .

وماء مطر . په اوبو د باران سره .

ویشربه علی الریق . دادې وڅکي بیا .

والیصم ثلاثة ایام . درې ورځې روژې دې ونیسي .

ولیکن افطاره علیه .روژه ماتې دې په دغه اوبو کوي .

فانه یحفظها ان شاء الله عزوجل . که حفظ غواړي که اصناف د علم غواړي که د خدای تعالی خوښه وي ده ته به یې ورزده کړي .

ویدعوا به في ادبار صلواته المکتوبة .او د فرض مونځ پسې دې هم دا دعاء کوي .

اللهم اني اسألك بانك مسئول لم يسأل مثلك ولا يسأل اسألك بحق محمد رسولك ونبيك وابراهيم خليلك وصفيك وموسى كليمك ونجيك وعيسى كلمتك وروحك و اسألك بصحف ابراهيم وتوراة موسى وزبور داؤد وانجيل عيسى وفرقان محمد صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و اسألك بكل وحي اوحيته وبكل حق قضيته وبكل سائل اعطيته و اسألك باسمائك التي دعاك بها انبياؤك فاستجبت لهم و اسألك باسمك المخزون المكنون الطهر الطاهر المطهر المبارك المقدس الحي القيوم ذي الجلال و الاكرام واسألك باسمك الواحد الاحد الصمد الفرد الوتر الذي ملأ الأركان كلها والذي من اركانك كلها واسألك باسمك الذي وضعته على السموات فقامت واسئلك باسمك الذي وضعته على الارضين فاستقرت واسئلك باسمك الذي وضعته على الجبال فرست . واسألك باسمك الذي وضعته على الليل فاظلم واسئلك باسمك الذي وضعته على النهار فاستنار .و اسألك باسمك الذي يحيي به العظام وهي رميم و اسألك بكتابك المنزل بالحق ونورك التام ان ترزقني حفظ القرآن و حفظ اصناف العلم وتثبتها في القلبي وان تستعمل بها بدني في ليلي ونهاري ابدا ما ابقيتني يا ارحم الراحمين .

خو مطلبي تكي په كې دادي چې دعاء وركې شوې ده .أسألك بحق محمد رسولك ونبيك وابراهيم خليلك وصفيك وموسى كليمك ونجيك وعيسى كلمتك وروحك په دې انبياء اولوا العزم باندې اود هغې په حق باندې توسل دي .

## لسم حديث :

مستدرک للحاكم جلد ۲ صفحه ۶۷۲ :

حدثنا ابوسعيد عمرو بن محمد بن منصور العدل حدثنا ابوالحسن محمد بن اسحاق بن ابراهيم الحنظلي حدثنا ابوالحارث عبدالله بن مسلم الفهري حدثنا اسماعيل بن مسلمة انبأ عبدالرحمن بن زيد بن اسلم عن ابيه عن جده عن عمر بن الخطاب رضى اله عنه قال قال رسول

الله صلی الله علیه وسلم لما اقترف آدم الخطیئة .

آدم علیه السلام چې کله اقرار وکړ په خپله خطاء .

قال یا رب اسألك بحق محمد لما غفرت لي .

سوال درنه کوم په حق د نبي علیه السلام باندې دا غوارم چې ماته بخښنه وکړه .

فقال الله یا آدم وکیف عرفت محمداً ولم اخلقه ؟ قال یا رب لأنك لما خلقتني بیدك

ونفخت في من روحك .

زه دې خپل ید بلاکیف باندې پیدا کړم او ما کې دې خپل روح معظم یعنې مشرف روح

او ذي عزت روح دي واچوه .

بعضې ځایونو کې تأویلات د ضروریاتو نه وي ګنې د اسلافو مذهب دادی چې په داسې مسائلو کې چون چرا ونه شي او بس علم مفوض الی الله تعالی وګرځېږي خلقتني بیدک ، اوس دلته به نور تصورات نه کوي العیاذ بالله چې دده تنه په عرفات کې وه خدای تعالی ګنې راغې داسې سوچ وکړي یا جسم مجسم وه عیاذ بالله ، ید نه تعبیر په لاس وکړي چې ختې راخیستې او دده تنه یې ترې جوړوله .

نا حدیث قدسي کې راځئ چې زما کار دادی چې وایم : کن فیکن ، نو دا ځمکې او اسمانونه داسې نه دي پیدا شوي چې ګنې الله پاک په کې العیاذ بالله ځان ستړي کړي هغه دا تول په کلمې د کن فیکن سره پیدا کړې دي په اسبابو بناء نه دي .

باقي د اسلافو رأیه داده چې ید ثابت شو بس ترجمه یې هم مه کوه نه باید دانست که ترجمه یې شې د بدست نور ظلم داسې لیکي ترجمه په لاس مه کوه دلته بس تعبیر ترې نه په دې سره کوه .

خلقتني بیدك .

ده ته یې ولې مضاف کړ دا نور خلک چې پیدا شوې دي مور او پلار په کې توسط لري دده پیدائش محض بقدرت الله تعالی بدون الاسباب نو مضاف شو الی قدرة الله تعالی ځکه ورته خلقتك بیدك نسبت کېږي او دا تاویل خو به ځکه کوي چې نفخت في من روحك اوس څه ترې نه جوړوي وا دې چوه ما کې دا خپل روح نو اوس څه وایې چې خالق روح لري په ده کې واچوه

نو خپله به تاویل کوي تاویل به څه شي وي یا خو علم مفوض الی الله که د متشابهاتو نه یې کړ لکه ایت کې متشابه دي .

په احادیثو کې هم متشابه دي داد اسلافو رایه شوه او یا دا چې اضافت للتشریف والتعظیم ، ما کې دې واچوه هغه روح چې ډیر عزتمند وه .

لکه بیت الله اضافت للتشریف دي یا ناقة الله یا أسد الله روح الله نو دا ټول اضافتونه داسې شوې دي .

ونفخت في من روحك .......

رفعت رأسي فرأيت على قوائم العرش مكتوباً لا اله الا الله محمد الرسول الله فعلمت انك لم تضف الى اسمك الا احب الخلق اليك فقال الله صدقت يا ادم انه لاحب الخلق الي ادعني بحقه.

دده په حق رانه دعاء وغواړه .

قد غفرت لك .بخښنه مې درته وکړه .

ولولا محمد ما خلقتك .که چیرته دې نه وایي ما به ته نه واي پیدا کړي .

هذا حديث صحيح الاسناد وهو اول حديث ذكر ته لعبد الرحمن بن زيد بن اسلم في هذا الكتاب .

## إيرادات :

ددې په سند کې عبد الرحمن بن زید بن اسلم راغلې هو ضعیف نو چې امام حاکم وویل چې صحیح الاسناد اعتماد وکه کنه له ده نه خو ستا علم زیات نه دي ذهبي چې کله نقل د چا نه وکړي اعتماد پرې کوي خپل قول ته یې اعتماد ورنه کړي ځکه دې خاص شاګرد د ابن تیمیه وه نو چې هر کله ابن تیمیه توسل ته حرام وویل او دې یې شاګرد وه نو هغه روایات چې توسل ترې ثابتیږي او دده د رأیه مخالف وي نو دې به ورته موضوعي نه وایي.
تلخیص کې په دغه ځای باندې ذهبي ورته موضوعي ویلي دي په قول یې اعتماد نه دي په کار او وهابیانو ټولو دې کې د ذهبي تقلید کړي چې نسبت د موضوع یې ورته کړي

هغه باندې تاثير د خپل استاذ ابن تيميه وه هغه اولين انسان دي چې توسل نه يې انكار كړې دي مثال زه غلام حضرت مثبت د توسل يم .

او بل څوک منکر د توسل دي نو د هغه قول ته په رد د توسل کې چې جرحه کوي اعتبار به ورکوي كه نه په ورکوي ، اعتبار به نه ورکوي هغه منكر دي دغې مسئلې د خپلې رأى موافق چې كوم روايت مثبت دد ې وي خپله به يې مجروحه وي كنه او زه مثبت يمه .

نو چې زه وايمه دا حديث قوي دي نو زما قول ته به هم اعتبار نه وي ځکه چې زما رايه داده چې توسل جائز دي نو زه خو به خامخا زور لګوم خپله دعوى به ثابتوم كيدې شي ضعيف قوي كړمه نو زه به هم نقل كوم د چا نه او دې به هم نقل كوي د چا نه كه عمده قول يې پيش كړه خو صحيح ده كه دده قول وه هيڅ اعتبار ورته نشته زه به هم نقل كوم كه ما په توثيق ديو امام قول پيش كړ نو قبول كړ كه ما خپل قول پيش كړ نو مردودو به وي ځكه زما رأيه د توسل ده .

او دده رأيه د نفي ده نو دغه شان ابن تيميه دا خلک چې وه دا يوه ډله دوي د توسل منكرين دي نو هر كله چې كوم روايت ثبوت د توسل كوي ددوي اقوالو ته اعتبار په كې نشته ځكه هغه ددوي د رأى مخالف دي نو ضرور به دوي هغه روايت ته د جرحې نسبت كوي او څه ضعف به ثابتوي .

نو جواب دادى چې عبد الرحمن بن زيد بن اسلم چې وه ابو احمد ابن عدى دده باره كې ليكي :

له احاديث حسان . دده احاديث حسان شته چې حسن د مقبولاتو نه دي .

وهو ممن يكتب حديثه .دا هغه څوک دي چې حديث يې ليكلې شي يعني مقبول دي .

تهذيب الكمال د حافظ مزي جلد ۱۷ صفحه ۱۱۹ دده حالات ذكر شوې دي اول جرحه ده باندې امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ كړې ده دا څومره خلک چې ده باندې رد كوي تقليد د امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ كوي .

علامه كوثري رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي :

عبد الرحمن وان ضعفه مالك وتابعه آخرون لكن الخبر مما قبله امام مالك بنفسه .

حديث د توسل د آدم عَلَيْهِ السَّلَام په نبي عَلَيْهِ السَّلَام باندې امام مالک خپله د مقبولاتو نه

ګرځولې ده په عبد الرحمن جرحه کوي او حديث يې قبلوي ولې يې قبلوي څه علت دي.

د اصول حديث دا طريقه ده چې يو حديث لره مثلاً پنځه راويان پيدا شول ددې مصنف شيخ باندې جرحه نشته خو په شيخ الشيخ باندې جرحه راغله تاسو به دا حديث دې بله رتبه کې ګوري د هغې نه مخکې رتبه د صحابي رتبه به ګوري چې هغه زمانه کې حديث معروف معمول به دي که نه دا چا باندې چې جرحه شوې نه دا نه دده نه مخکې زمانه کې.

که چيرته دا حديث دده نه مخکې زمانه کې معمول به معروف و ګرځيده جرحه ده باندې بې ځايه شوه حديث خو د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ قول ته وايي ده باندې خو جرحه د سند له وجهې ددغه راوي نه راغله چې دده نه مخکې زمانه کې يې صحابه معمول به ګرځوي معروف يې ګڼي تابعينو زمانه کې يې معمول به ګرځيږي معروف يې ګڼي نو بيا جرحه په دې وروستي سړي بې ځايه ده حديث د مقبولاتو نه و ګرځيده.

امام مالک صاحب په عبد الرحمن صاحب جرحه کوي او خپله حديث د توسل د آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ قبلوي ولي قبلوي چې دا په زمانه د صحابه وو تابعينو کې معروف ؤ.

نو ګويا دا حديث د سند په اعتبار سره د عبد الرحمن صاحب نه مجروح شو خو د معروفيت په وجه په زمانه د صحابه وو تابعينو کې بيرته قوي و ګرځيده.

قاضي عياض رَحِمَهُ اللَّهُ په الشفاء جلد ۲ صفحه ۴۱ کې د ابو جعفر المنصور بادشاه امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ ته راځي سند ذکر کوي د ابن حميد:

**ناظر ابو جعفر امير المؤمنين مالكاً في مسجد رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.**

مناظره يې وکړه يا يې وکتل.

**فقال له مالك يا امير المؤمنين لا ترفع صوتك في هذا المسجد.**

پادشاه په زوره غږيده منصور بادشاه دا هغه بادشاه ده چې امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ يې په قضاء باندې جيل ته اچولې وه.

**فان الله تعالى ادب قوماً فقال لا ترفعوا اصواتكم فوق صوت النبي ومدح قوماً فقال ان الذين يغضون اصواتهم عند رسول الله و ذم قوما فقال ان الذين ينادونك من وراء الحجرات**

واكثرهم لايعقلون.

امام مالک صاحب بادشاه ته وویلي :

وان حرمته میتا کحرمته حیا. دې چې دنیا نه لاړ او په دنیا کې وه احترام یې یو شان لازم دي.

فاستکان لها ابوجعفر. بادشاه ورته رانرم شو غلې شو.

وقال یا ابا عبدالله. امام مالک صاحب ته وایي :

استقبل القبلة وادعو ام استقبل رسول الله. قبلې ته مخ کړم دعاء وکړم که رسول الله ﷺ ته مخ کړم دعاء وکړم. امام مالک صاحب ورته فرمایي :

لم تصرف وجهك عنه. ولې مخ ترې اړوې.

هو وسیلتك ووسیلة ابیك آدم عليه السلام. دا ستا هم وسیله ده او ستا د نیکه د آدم عليه السلام هم وسیله وه.

نو امام مالک رحمه الله ته څنګه پته ولېده چې دا آدم عليه السلام وسیله کړې وه نو چې امام مالک رحمه الله ته دغه حدیث د عمر فاروق د توسل د آدم عليه السلام معروف نه واي څنګه بادشاه ته دا خبره کوي نو جرحه په عبدالرحمن امام مالک کړې ده او امام مالک خپله دغه حدیث د عبدالرحمن مقبول ګڼي ځکه یې مقبول ګڼي له وجهې د شهرت ماسبق دده کې.

په دغه روایت باندې الباني وغیره څه اعتراض کړې دي چې په سند ددې کې محمد بن حمید رازي په کې راغلي دي د شفاء په روایت کې د امام مالک دې نه اول جواب دا په کار دي چې داثمه وو اقوالو کې د سند په لحاظ جرحې بې ځایه دي.

دا جرحه قبلول في قول النبي ﷺ وافعاله مقبول دي په قول د ائمه وو کې سند یا په سند جرحه بې ځایه ده.

چې تا یو کتاب کې د قال ابو حنیفه رحمه الله قول پیدا کړ فاقبلوا نو قبول یې کړه، دې کې سند ونه، مه لټوي چې ما ته د قال ابوحنیفه رحمه الله سند وښایه.

د امامانو د اقوالو سند ونه خو نښته دي پاتې لا دا چې قاضي عیاض شفاء کې د امام

مالک رَحِمَهُ اللهُ قول سره د سند ذکر کړي بیا هم محمد بن حمید رازي چې دې داد امام ابي داؤد ترمذي ابن ماجه شیخ دي د هغه باره کې عبد الله بن امام احمد صاحب وايي چې ما د خپل پلار امام احمد نه واوریدل :

لایزال بالري علم مادام محمد بن حمید حیاً . په رئ علاقه کې تر هغې پورې علم حیات وه چې محمد بن حیمد ژوندي وه او چې دې وفات شو نو علم ختم شو .

دارنګې ابو قریش محمد بن جمعه بن خلف الحافظ وايي چې ما محمد بن یحیی ذهلي ته وویل :

ماتقول في محمد بن حمید قال ألا تراني هو ذا احدث عنه . څه رأیه دده په حق د محمد بن حمید کې هغه وویل نه ګوري زه ترې روایت کومه چې زه ترې حدیث نقلوم ته یې څنګه نه قبلوي .

دارنګې ابو قریش وايي زه په مجلس د ابي بکر الصاغاني کې موجود ومه چې محمد بن اسحاق دي حدیث یې بیانوه نو وي ویل :

حدثنا محمد بن حمید . وايي ما ورته وویل :

تحدث عن ابي حمید . د محمد بن حمید نه حدیث نقلوي .

فقال : ما لي لا أحدث عنه وقد حدث عنه احمد بن حنبل ویحیی بن معین .

زه به ترې څنګه روایت نه نقلوم امام احمد ابن حنبل او یحیی ابن معین یې ترې نقلوي دا ټول دلائل د توثیق دي چې دغه شان ائمه حدیث نقلوي ، ابوبکر بن خیثمه وايي :

سئل یحیی ابن معین عن محمد بن حمید الرازي فقال ثقة لیس به بأس رازي کیس .

دارنګې ابو العباس بن سعید وايي :

سمعت جعفر بن ابي عثمان الطیالیسي یقول ابن حمید ثقة .

نو دا جرحه په هغه بې ځایه ده .

نو شیخ صاحب مرحوم فرمایي په خپله رساله کې :

بعد ان أقر الامام مالك بصحة الخبر واحتج به زالت تهمة الوهم وقلت الضبط عن

عبدالرحمن الذي انما يقتدى من رماه بذلك بمالك .

چاچې په ده جرحې کړې اقتدای یې په امام مالک صاحب پسې کړې ده هغه خپله قبول کړې ده .

وهذا هو الامام الشافعي يستدل في دين الله ببعض احاديثه في الام وفي مسنده .

امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ په کتاب الام کې او په مسند کې د عبدالرحمن روايات ذکر کوي او استدلال د مسائلو ترې نه کوي .

فلا لوم على الحاكم في عده هذا الحديث صحيحاً .

هيڅ ملامتيا په امام حاکم نشته دي چې دده حديث ته يې صحيح ويلي دي .

تلك عشرة كاملة

لس روايات مرفوعه په دې باندې د توسل باب ختم نه دي ، بلکې د مرفوع حديثو د نصوصو آياتونو هغه استدلالات تمام ته ورسيدل .

ددې نه اخوا چې کوم مبحث د صحابوو د اقوالو دي د لسو صحابوو روايات او د متعددو فقهاء عبارات ان شاء الله ذکر کولې شي .

## المبحث الرابع : تحقيق الوسيلة في ضوء اقوال الصحابة رضوان الله تعالى عليهم اجمعين :

دې سره به د منکرينو هغه خبره هم دفعه شي چې دوي وايي صحابه کرامو دا توسلات ندي نيولي دا ددوي افتراء ده او هغه زمانه کې توسل په ذواتو فاضلوو باندې معروف وه .

توسل بالاعمال او توسل باسماء الله وصفاته او توسل بالذوات الفاضلة زمانه د صحابه کرامو کې توسلات معروفه چې وه په ذواتو باندې وه يا باسماء الله تعالى و صفاته باندې وه دا ډير معروف وه .

او هر چې توسل توسل بالاعمال وه جائز وه بعضې رواياتو کې ثابت ده استدلالات پرې شته خو زمن د صحابه وو کې معروف نه وه د صحابه کرامو په تاريخ کې چې وکتل شي نو هغوي توسلات بالعمل ډير کم نيولي دي اولين د صحابه کرامو چې وه هغه صديق اکبر

رضي الله عنه.

نو توسل د صديق اكبر رضي الله عنه امام غزالي رحمه الله په احياء العلوم کې جلد ۱ صفحه ۳۲۱ کې ذکر کړي نو په دې کې دعاء د ابوبکر صديق رضي الله عنه باندې يو باب لړوي او بيا ذکر کوي:

علم رسول الله صلى الله عليه وسلم ابابكر الصديق رضي الله عنه ان يقول.

نبي اکرم صلى الله عليه وسلم صديق اکبر رضي الله عنه ته ددې تعليم ورکړې وه چې ته به داسې دعاء کوې:

اللهم اني اسألك بمحمد نبيك وابراهيم خليلك وموسى نجيك وعيسى كلمتك وروحك وبتوراة موسى وانجيل عيسى وزبور داود وفرقان محمد صلى الله عليه وسلم وبكل وحي اوحيته او قضاء قضيته او سائل اعطيته او غني افقرته او فقير اغنيته او ضال هديته اسألك باسمك الذي انزلته على موسى عليه السلام واسألك باسمك الذي بسط به ارزاق العباد واسألك باسمك الذي وضعت على الارض فاستقرت.

هغه د کتاب الدعاء د طبراني د حفظ القرآن چې کومه دعاء وه کوم ځاې چې مخکې تير شوې وه باقي الفاظ چې دي تقريباً همغه الفاظ دي نو رسول اکرم صلى الله عليه وسلم صديق اکبر رضي الله عنه ته ددې تعليم ورکړې وه، چې ته داسې دعاء کوه.

نو ددې په ابتداء کې توسلات دي:

اللهم اني اسألك بمحمد نبيك.

دا باء سببيه ده لکه واستعينوا بالصبر والصلوة کې د توسل بالعمل لپاره استدلال ترې کيږي.

وابراهيم خليلك.

نو که يو بې ځايه تأويل تقدير بلا ضرورته څوک کوي چې:

اسألك بمحمد نبيك بدعاء محمد.

نو دلته خو نوم اخيستل شوې دي او دعاء هم شوې ده نو دا توسل بالاسم دي دعاء د هغه نه يادوي ځکه دې نه بعد ابراهيم خليلک موسی نجيک هغوي دنيا نه دغه وخت کې تللي وه.

نو دا اولين د صديق اکبر رضي الله عنه توسل وه او يو اځې امام غزالي رحمه الله په احياء العلوم کې نه بلکې د دغه الفاظو تائيد د روايت د ابن مسعود رضي الله عنه نه هم کيدې شي چې د هغې روايت خطيب بغدادي کړې دي په الجامع لأخلاق الراوي وآداب السامع جلد ۵ صفحه ٦٦ کې دغه روايت ذکر کړي دي.

اود رنګې ابو الشيخ ابن حبان دغه روايت په کتاب الثواب کې ذکر کړې دي او روايت د عبدالله ابن عباس چې امام طبراني په کتاب الدعاء کې حواله مخکې ذکر شوې ده:

**تؤيدوا هذه الرواية معناً.**

هغه هم ددې روايت معنوي تائيد کوي هغې کې هم ددغې الفاظو تلقين دي.

## دويم توسل د حضرت عمر رضي الله عنه:

صحيح البخاري جلد ۱ صفحه ۱۳٦ باب سؤال الناس الامام الاستسقاء اذا قحطوا، په دې کې د انس ابن مالک رضي الله عنه:

**حدثنا الحسن بن محمد قال حدثنا محمد بن عبدالله الانصاري قال حدثني ابي عبدالله بن المثنى عن ثمامة بن عبدالله بن انس عن انس بن مالك ان عمر بن الخطاب رضي الله عنه كان اذا قحطوا** .عمر فاروق رضي الله عنه وه:

**اذا قحطوا (اى اذا أصابهم القحط) استسق بالعباس بن عبدالمطلب رضي الله عنه فقال اللهم انا كنا نتوسل اليك بنبينا فتسقينا** .مونږ به وسيله کوه تا ته نبي خپل تا به مونږ باندې باران کوه.

**وانا نتوسل اليك بعم نبينا فاسقنا** .مونږ اوس وسيله کوو تا ته تره د نبي زمونږ په مونږ باران وکړه.

**قال فيسقون** . انس صاحب وايي باران به پرې وشو.

دې ځای ته لږ متوجه شئ هغه دا چې ژور نظر بعضې خلک نه کوي دې ځای کې او ولته دا ځای دلیل ګرځوي لپاره د توسل فعلي نه قولي وایي عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ګوره تره د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ را وغوښته دعاء یې ترې وغوښته.

په بخاري کې د حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دعاء فعلي موجوده نه ده هغه شارحینو او نورو محدثینو په څه روایاتو کې ذکر کړې ده زه یې ذکر کوم خپله په بخاري کې د عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ توسل اسمي او قولي مذکور دي ګوري حضرت عباس صاحب یې راحاضر کړ دغه ځای کې مجمع عامه موجوده وه دلته یو توسل عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نیولي دي او بله دعاء حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کړې ده دعاء د حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دلته مذکوره نه ده.

په حدیث د بخاري کې توسل د عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مذکور دي نو دوه دعاء ګانې شوې دي یوه عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خپله کړې ده بله حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کړې ده الفاظ د دعاء د حضرت عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا دي:

**اللهم لم ينزل بلاء الا بذنب و لم يكشف الا بتوبة وقد توجه بي القوم اليك لمكاني من نبيك.**

محشي د بدر الدين عيني عمدة القاري نه دلته نقل کړې دي په دغه ځای باندې یا الله دي قوم زه تاته مخامخ کړې یمه ځکه یې مخامخ کړم لمكاني من نبيك ما ته یو شرف دي چې حاصل دي ما ته ستا د پیغمبر نه چې تره د هغه یمه....

**وهذه أيدينا اليك بالذنوب ونواصينا بالتوبة فاسقنا الغيث.**

خپله د عباس صاحب دا الفاظ د دعاء دي دا مذکور نه دي په بخاري کې.

دویم الفاظ د عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دي مذکور دي په بخاري کې هغه دا دي:

**اللهم انا كنا نتوسل اليك بنبينا فتسقينا وانا نتوسل اليك بعم نبينا فاسقنا.**

یا الله اوس در ته وسیله کې تره د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ پیش کوم په مونږ باران وکړه.

اللهم ندا شته مقصود بالنداء فاسقنا شته دعاء وشوه د دعاء الفاظ خو دلته هم شته د عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په الفاظو کې دا تره د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ پیش کول خپله توسل قولي دي د عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په الفاظو کې توسل قولي مذکور دي یو شیخ صالح دلته موجود دي او ته

وايي يا الله دده په خاطر په مونږ باران وکړه دا قولي اسمي شو.
دا چې بيا هغه دعاء کوي هغه بيا فعلي دي نو د عباس صاحب دعاء توسل فعلي دي.
او د عمر صاحب قول چې کوم بخاري را اخيستي دا توسل قولي دي او دوي د توسل قولي نه منکر دي.
بدر الدين عيني چې کوم الفاظ د دعاء ذکر کړي د عمر فاروق رضي الله عنه تصريح په دې باندې ده چې دوه دعوات شوي ده هم کړي ده او عباس رضي الله عنه هم کړې ده.
دوي داسې وايي چې عمر فاروق رضي الله عنه راغې تره د نبي عليه السلام ته يې وويل ته مونږ ته دعاء وکړه.
داسې نه ده يوه دعاء عمر رضي الله عنه کړې ده او يوه دعاء تره د نبي عليه السلام کړې ده.
مونږ استدلال د عمر رضي الله عنه د الفاظو نه کوو چې هغه توسل قولي دي دلته محض داسې نه دي شوي چې هغه يې د لاس نه رانيولې راوستې ده چې راځه مونږ ته، ته دعاء وکړه.
نه راوستې دي ودرولې دي بيا عمر فاروق رضي الله عنه دعاء کړې ده، يا الله دا تره د نبي عليه السلام درته پيش کوو په مونږ باران وکړه.
دا قولي توسل شو بيا هغه پاڅيدلې بله دعاء يې هم کړې ده هغه بيا توسل فعلي دي.
د عيني په حاشيه کې چې نقل دي عبارت د هغې الفاظو نه خپله پته لږي چې دوه دعاء ګانې شوې دي هغه دا دي:
**فلما صعد عمر ومعه العباس المنبر.** عمر صاحب او عباس رضي الله عنهما دواړه منبر ته پورته شول.
**قال عمر:** عمر رضي الله عنه دعاء وکړه:
**اللهم انا توجهنا اليك بعم نبيك وصنو أبيه فاسقنا الغيث ولا تجعل من القانطين ثم قال قل يا ابا الفضل قال العباس اللهم لم ينزل بلاء الخ.**
بيا يې وويل عباس رضي الله عنه اوس ته هم دعاء وکړه.
نو مونږ استدلال د عباس رضي الله عنه د الفاظو نه، نه کوو هغه مذکور في البخاري نه دي هغه توسل فعلي دي.

په خپله عمر صاحب چې کوم الفاظ استعمال کړي دا قولي توسل دي دوي دې ځای نه داشي جوړ کړ.

که توسل په نبي عَلَیهِ السَّلَام او له دنیا نه تللي اشخاصو باندې جائز وای نو عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به دې وخت کې قبر د نبي عَلَیهِ السَّلَام باندې توسل نیولې وای کنه نو مونږیې په ژوندو هم روا ګڼو اسمي توسل، او مونږیې په وفات شده باندې هم روا ګڼو اوس توسل په اشخاصو صالحو باندې چې حیات وي فعل د هغې خو دلیل د حر..ت د آخر نه جوړیږي.

فتح الباري عیني قسطلاني څومره چې تاسو په دې ځای ګوري هغوي به دا خبره کوي چې دې کې اشاره ده دې خبرې ته چې جائز دي توسل د فاضل په مفضول باندې.

دایې خلکو ته ښودله چې فاضل په مفضول هم توسل نیولې شي شان د عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خو په عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې بلند دی په اتفاق د امت باندې، نو هغه بیا څنګه ده باندې وسیله نیسي وای دې ته اشاره ده چې فاضل په مفضول توسل نیولې شي.

علامه کوثري رَحِمَهُ اللهُ په محق التقول کې دغه ځای باندې لیکي:

انا کنا نتوسل الیك بنبینا قول صحابي کنا نفعل کذا ینصب علی ماقبل القول.

فیکون المعنی ان الصحابة رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ کانوا یتوسلون به في حیاته وبعد لحوقه بالرفیق الاعلی الی عام الرماد.

دا سخته قحطي چې راغلې دا کال د رمادي ده او دا ۱۲ کال د امیر المؤمنین د خلافت جوړیږي دا ډیر وروسته شوې دي او ده وویل چې:

انا کنا نتوسل الیك نبیاً.

علامه کوثري رَحِمَهُ اللهُ وایي چې صحابي وویل:

کنا نفعل کذا.

دا کار به مونږ کوو نو منسوب شو دا علی ماقبل زمن القول ته د دغې خبرې نه مخکې وخت ته شامل شو نو خپله ترې پته ولږیده چې دا دولس کاله صحابه وو هم په قبر د نبي عَلَیهِ السَّلَام توسل نیولې وه دغه وجه ده چې ابن عبد البر په الاستیعاب جلد ۱ صفحه ۲۴۶ کې لیکي ذکر کوي:

وفعل عمر انما يدل على ان التوسل بقرابة الرسول الأحياء جائز كجوازه بالنبي ﷺ.

د عمر صاحب دا فعل دليل دذې خبرې دي چې د انبياءاو د رسولانو په اقرباء باندې توسل روا دي لکه چې په نبي عليه السلام روا دي.

او مستدرک للحاکم په جلد ۱۲ صفحه ۳۶۸ کې چې رقم د حديث: ۵۴۴۷ جوړيږي ذکر کوي الفاظ د دعاء د عمر فاروق رضي الله عنه:

اللهم هذا عم نبيك العباس نتوجه اليك به فاسقنا.

دا تره د نبي عليه السلام دي چې عباس رضي الله عنه دي مونږ تا ته مخامخ کړ چې ته په مونږ باران وکړه.

دا الفاظ د توسل قولي دي.

فما برحوا حتى سقاهم الله قال فخطب عمر الناس فقال ايها الناس ان رسول الله ﷺ كان يرى للعباس ما يرى الولد لوالده.

نبي عليه السلام به دغه تره ته داسې نظر باندې کتل لکه ماشوم بچي چې پلار ته ګوري:

يعظمه ويفخمه ويبر قسمه. دده تعظيم به يې کوه او که دده به په غصه کې قسم وخوړ نبي عليه السلام به دې مبرور وه په کې نه به يې حانث کوه په کې.

فاقتدوا ايها الناس برسول الله ﷺ في عمه العباس.

ټول خلک د نبي عليه السلام تابعداري وکړي په حق د تره د هغه کې چې عباس رضي الله عنه دي نو چې هغه يې تعظيم کوه تاسې يې هم تعظيم کوي.

واتخذوه وسيلة الى الله عزوجل. ټول دې وسيله الى الله وګرځوي.

في مانزل بكم. په هر تکليف کې چې نازل شي په تاسو باندې نو تاسو وسيله کې تره د نبي عليه السلام پيش کوي.

دغه روايت چې د عمر رضي الله عنه په تقرير کې دا الفاظ راغلل:

واتخذوه وسيلة الى الله.

ابن عساكر په معجم ابن عساكر جلد ۱ صفحه ۴۳۰ کې هم ذکر کړي او کتاب الدعاء طبراني جلد ۵ صفحه ۴۲۷ کې هم ذکر کړي.

ابن حجر عسقلاني فتح الباري جلد ۳ صفحه ۴۴۳ ذکر کړي.

**دريم توسل** په قول د حضرت علي المرتضی رضي الله عنه.

**څلورم توسل** په قول د حضرت عباس رضي الله عنه.

**پنځم توسل** په قول د حضرت عائشې رضي الله عنها کې.

دا دري واړه په يو ځای يوه دعاء کې جمع کيږي په شريکه دعاء کوي توسل نيسي.

تاريخ فتوح الشام جلد ۱ صفحه ۱۶۸ کې ذکر کوي دا هغه واقعه ده چې کله شام دمشق ونيول شول.

قيصر روم هرقل غصه شو يو عظيم لښکر د لس لکه او شپيته زره يې تيار کړ.

يو عام پاڅون د مسلمانانو خلاف وشو نو څو مره ښارونه چې په شام او دمشق کې نيول شوې وه هغه مشورتاً صحابه کرامو پريښودې بيرته سرحداتو د عربو ته راورسيدل ټول ځايونه هغوي بيا ونيول.

نو سرحد د عربو سره نژدې د يرموک يوه عظيمه دشته وه په دغه ځايکې ابو عبيد بن جراح رضي الله عنه او حضرت خالد رضي الله عنه ملګري دي دوي تقريباً يو ديرش زره لښکر کې دلته واړول.

نو دې ځای نه امير المؤمنين حضرت عمر رضي الله عنه ته قاصد ځي خط ورکوي چې لاړشه امير المؤمنين نه مونږ د پاره مشوره واخله ورته ووايه چې ټول ښاريې مو خوشې کړې دي ځکه زمونږ تعدا د کم دي او کافران ډير زيات وه.

ددې نه بعد باقي ستاسو مرضي ده که وايي چې مدينې منورې ته راشي نو هلته درځو او که وايي چې وجنګيږي نو جنګيږو.

د قاصد نوم دي عبد الله بن قرط هغه ديو خالي هفتې په ورځ روان شو او د رار واني جمعې په ورځ ورسيده.

د جمعې د لمانځه نه مخکې امير المؤمنين او دس کوي دې راورسيده و دريده ورته د هغه داسې رعب وه چې څوک نژدې ورته ودريدې نه شو او چې ورته وبه و دريده نو زر به يې

نږې تپوس کوه څوک یې نوم دي څه ده له کوم ځایه راغلې .
هغه ورته وایي قاصد د ابو عبیده بن جراح یمه خط مې راوړي دي عبد الله بن قرط یم ،
هغه خط یې چې را واخیست چې وي کتلو نو رنګ کې یې تغیر راغې په دې خفه شو چې په
دغه علاقو خو ډیر شهیدان شوې وه د مشق حلف شام باندې دا ټول مو بدون د جنګ نه
خوشي کړل او اوس نورې مشورې غواړي چې مونږ را شو او که مخکې وجنګیږو .
کله چې د جمعې خطبې ته پاڅیده نو جهادي بلیغ بیان یې وکړ او ددې نه بعد یې
متصل چند صحابه کرام کینول مشوره یې وکړه چې مونږ ته آخري حکم دي چې د دوه کافرو
مقابل کې یو مسلمان دي دلته چې ګورو دوي صحابه کرام یو دیرش زره دي او کافران لس
لکه او شپیته زره دي دوي ته خو جائز دي چې وروسته راشي تاسو څه فیصله اوس کوي د
اکثرینو رأیه دا شوه چې قومنده د جهاد او جنګ ورکړل شي او د وروسته راتلو اجازت ورته
مه کوه .
نو خط یې ولیکه عبد الله ابن قرط ته یې خط وسپاره چې څه ځان رسوه هغه اته ورځې
مزل کړي ماز دیګر یې بیا ولیږه هغه واقعه ده په فتوح الشام کې منقوله ده او دا فتوح الشام د
امام واقدي د متقدمینو نه دي ۳۵ کاله د امام بخاري نه مخکې تیر شوې دي او امام بخاري
په خپل تاریخ کې له ده نه نقل کوي دې په فن د تاریخ کې ثقه دي بلکې اوثق دي .
چې څو مره مؤرخین دي له ده نه اخذ کوي نو عبد الله بن قرط وایي ما خط راواخیست :
**وخرجت من المسجد من باب الحبشة .**
دغه وخت کې غټ دیوال چې مسجد نبوي نه تاو وه په هغې کې یو ه دروازه باب حبشه
وه زه باب حبشه باندې ووتم چې بهر ته ووتم نو زړه کې مې راغله چې ته خو روان جهاد ته یې
او هسې نه شهید شې راځه د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ روضې ته راشه یو څه تلاوت وکړه دعاء وکړه بیا به
ځې :
**فقصدت حجرة رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ .**
بعضې علماء ادباً قبر د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ته د قبر نسبت بنه نه ګڼي د هغې نه تعبیر په
حجره شریفه یا په روضه مبارکه باندې کوي نو ګوري دا الفاظ د ادب دي .
**فقصد حجرة رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ .** د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د حجرې اراده مې وکړه .

وعائشة رضي الله عنها جالسة عند قبره. هغه روضې سره ناسته وه.

وعلي بن ابي طالب رضي الله عنه والعباس رضي الله عنه جالسان عند القبر.

او حضرت حسين رضي الله عنه په غيږه د حضرت علي رضي الله عنه کې ناست وه او حضرت حسن رضي الله عنه په غيږه د عباس رضي الله عنه کې وه دوي ټول ناست وه د سورة هود او سورة انعام تلاوت يې کولو :

فسلمت على رسول الله. سلام مې واچولو :

فقال علي رضي الله عنه يا ابن قرط اعوالت على المسير الى الشام.

ولې راوګرځيدلې له تللو د شام نه، دې ورته وايي چې ما دا اراده وکړه چې يو ځل سلام وکړم او بيا تاسو دعاء راته وکړي او هغه چې کله روانيده امير المؤمنين حضرت عمر فاروق رضي الله عنه ورته ډيره دعاء کړې وه.

حضرت علي رضي الله عنه ورته ووېل چې عمر فاروق رضي الله عنه غوندې شخصيت تا ته دعاء کړي د نور چا دعاء ته څه ضرورت دې هغه خو هغه انسان دې چې نبي عليه السلام يې باره کې ويلي وه که ما نه وروسته نبي راتلې شوې هغه به عمر فاروق رضي الله عنه وه خو هغه نه راځي د حضرت عمر رضي الله عنه مناقب يې ورته بيان کړه.

عبد الله بن قرط رضي الله عنه ورته مخ راواړوه :

فقال عبد الله قرط ما ذكرت شيئاً الا وانا عارف به من فضل عمر بن الخطاب رضي الله عنه.

تا چې د عمر رضي الله عنه کوم مناقب بيان کړه ما ته پته ده ما ته د هغه شان معلوم دې ؛

ولكني أردت الزيادة من دعائك ودعاء العباس عم رسول الله صلى الله عليه وسلم.

زما مقصد دا دی چې راته دعاء وکړي او حضرت عباس رضي الله عنه هم راته دعاء وکړي.

ولا سيما عند قبر الرسول المعظم المكرم. بالخصوص دلته په روضه کې يې راته وکړي دې ورته دا وايي هغه هم صحابه دي دې هم صحابي دي.

دلته اوس دا الفاظ نقلوي ۱۲۱۷ کاله مخکې امام واقدي تير شوې دي :

قال فرفع العباس رضي الله عنه يديه. او چت کړه حضرت عباس رضي الله عنه لاسونه.

وعلي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ كذلك . او علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم دغه شان لاسونه اوچت کړه داد دعاء هيئت شو .

وقالا . دواړه دعاء کوي :

اللهم انا نتوسل بهذا النبي المصطفى والرسول المجتبى .

مونږ وسيله نيسو په دغه نبي مصطفى رسول مجتبى باندې .

الذي . دا خو هغه ذات وه .

توسل به آدم فاجبت دعوته . چې آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ په ده وسيله نيولې وه تا يې دعاء قبوله کړې وه .

وغفرت خطيئته . او خطيه دې ورته معاف کړې وه .

دا مخکې ما تاسو ته وويل چې توسل د آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ حديث معروف وه په زمانه د صحابه کرامو کې که معروف نه واي نو حضرت عباس او حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دوي څنګه وايي چې دا هغه دي توسل پرې آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ نيولي وه دا صحابه وو کې معروف روايت وه چې آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ ته خطيه په توسل د محمد مصطفى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ معاف شوې ده نو ځکه دلته ورته اشاره کوي :

الا سهلت على عبدالله طريقه وطويت له البعيد . دا درنه غواړو چې آسان کړي عبدالله بن قرط لره لاره او رالنډ کړي ورته اوږده مسافه .

وأيدت اصحاب نبيك بالنصر الك سميع الدعاء .

او د خپل پيغمبر د صحابه وو په جهاد کې مدد وکړه او تائيد يې وکړه .

ثم قال : سر يا عبدالله بن قرط . څه روان شه .

فالله تعالى اکرم من ان يرد دعاء عمر و عباس وعلي والحسن والحسين رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ وازواج رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ .

الله تعالى ډېر کريم ذات دي نه شي کيدې چې هغه دې رد کړي د دعاء د عمر فاروق او د عباس او د حضرت علي او د حسنينو او په ازواجو د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ کې د بي بي عائشې دعاء

دې رد کړي .

وقد توسلوا اليه با كرم الخلق عليه .

حال دا دی وسیله کې ورته هغه څوک پیش کړي چې ټول مخلوق کې اکرم دي .

قال عبدالله بن قرط فخرجت من الحجرة وانا فرح مستبشر واستويت على كور المطية وركبة الفلاة وانا فرخ بدعاء علي والعباس وعمر رضي الله عنهم اجمعين قال عبدالله خرجت من المدينة بعد العصر من يومي ذلك الذي دخلت فيه المدينة .

چې د جمعې ورځ وه په لاره تلم انتظار مې کولو چې له اخوا نه خو اته شوا روزه کې راغلې وم اوس به هم اته ورځې مزل يې .

ولم ازل سائراً ثلاثة ايام فلما كانت صلاة العصر من اليوم الثالث اشرفت على اليرموك .

پنځه ورځې ورته خدای تعالی دا څمکه رالنډه کړه په دعاء د عمر فاروق او د اهل بیتو باندې عند قبر النبي صلی الله علیه وسلم ، نو دا توسل د صحابه کرامو وه اوس که دوي اعتراض کوي چې امام واقدي ضعيف دي نو د هغې جواب دا دی چې امام واقدي خو په فن د تاريخ کې ثقه دي په اتفاق .

او هر چې فن د حديثو دي دې کې هم د ډيرو رايه دده باره کې د توثيق دي .

امام ذهبي په سير اعلام النبلاء جلد ۹ صفحه ۴۵۵ کې ذکر کوي :

فلا يستغني عنه في المغازي وايام الصحابة واخبارهم .

استغنی دې نه شي کولې امام واقدي نه په مغازي وو کې او په تاريخ د صحابه وو کې او په اخبارو د هغوي کې استغنا ترې مه کوه څکه هغه جزيات د تاريخ چې ده مفصل کړي دا بيا ډيرو کې نه پيدا کيږي .

ابن سعد په طبقات کې ذکر کوي :

كان عالماً بالمغازي والسير والفتوح واختلاف الناس في الحديث والاحكام واجتماعهم .

په دې ټولو کې عالم وه .

خطيب بغدادي يې په شان کې ليکلي دا هغه څوک وه چې تمامه دنيا دده نوم نيولې وه

هر چا به یاد وه .

**وكان جواداً كريماً .**

ابراهيم حربي ذكر كوي :

**كان الواقدي اعلم الناس بأمر الاسلام واما الجاهلية فلم يعلم منها شيئاً .**

تاريخو نه دوه دي دوه قسمه مؤرخين دي يو د ادم عَلَيهِ السَّلَامُ نه د هغه وخت نه مؤرخين دا ټول تاريخ بيانوي بل د نبي عَلَيهِ السَّلَامُ د مغازي وو نا دي وايي : اعلم د خلكو وه بأمر الاسلام . هر چې د جاهليت د زمانې تاريخ وه په هغې نه پوهيده .

موسى بن هارون ليكي :

**سمعت مصعب الزبير يقول ما رأيت مثله قط .** دده په مثل عالم ما نه وه كتلي .

**يعقوب مولى ابي عبدالله ليكي :**

**سمعت الدراوردي يقول الواقدي امير المؤمنين في الحديث .**

دا لقب د امام بخاري دي د ډير توثيق نه كتابونه د جرحې او تعديل د يو محدث باره كې امير المؤمنين ليكي نو دراوردي وايي چې الواقدي امير المؤمنين في الحديث نو علماء په آحاديثو كې هم توثيق بيانوي په تاريخ كې خو هسې هم ثقه دي .

**يعقوب ابن شيبة يقول حدثني بعض اصحابنا ثقة .**

يعقوب ابن شيبه وايي زمونږ بعضې مشائخو مونږ ته دا وويلې چې واقدي ثقه دي بيا وايي :

**سمعت اباعامر العقدي يقول نحن نسأل عن الواقدي وانما يسأل الواقدي عنا .**

عجيبه خبره ده خلك راځي مونږ نه تپوس باره د واقدي كې چې څنګه سړي وه قوي وه كه ضعيف ، په كار داده چې واقدي ته خلك لاړ شي او زمونږ باره كې ترې تپوس وكړي يعنې هغه ته لاړ شي زمونږ جرحه ترې معلومه كړي .

خلك مونږ ته راځي د واقدي جرحې مونږ نه غواړي دا دده توثيق دي دده صفت كوي چې مونږ نه دده تپوس مه كوي ده نه زمونږ تپوس وكړي ځكه دي اعلم دي په مونږ كې .

دغسې نور وډيرو علماو د امام واقدي رَحِمَهُ اللَّهُ د ثقه والي باره كې اقوال كړي او ابن

حجر عسقلاني رَحِمَهُ اللهُ تهذيب التهذيب جلد ۹ صفحه ۳۲۴ کې نقل کړي پوره تفصيل بايد هلته وکتل شي.

## شپږم توسل د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنهُ او د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ

جامع الاحاديث جلد ۱ صفحه ۴۴۴ رقم د حديث ۲۳۰۶ دي دا روايت د حضرت عمر او حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُمَا دي چې مسند الفردوس هم ذکر کړي.

بمأثور الخطاب للديلمي جلد ۱ صفحه ۳۲۴ الفاظ دا دی حديث مرفوع دي:

عن عمر وعلي اذا شجاك شيطان او سلطان فقل يا من يكفي من كل احد ولا يكفى منه احد يا احد من لا احد له يا سند من لا سند له انقطع الرجاء الا منك فكني مما انا فيه واعني على ما انا عليه مما قد نزل بي بجاه وجهك الكريم وبحق محمد صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ عليك آمين.

دا حديث کنز العمال هم ذکر کړي جلد ۲ صفحه ۱۲۰ کې.

## اوم توسل په قول د حضرت معاويه رَضِيَ اللهُ عَنهُ:

تاريخ ابي زرعة الدمشقي ذکر کړي جلد ۱ صفحه ۸۶:

حدثنا الحكم بن نافع عن صفوان بن عمرو عن سليم بن عامر ان الناس قحطوا بدمشق فخرج معاوية يستسق بيزيد بن الاسود.

را اوو ته معاويه رَضِيَ اللهُ عَنهُ استسقاء غوښته په يزيد بن اسود باندې نو ظاهراً توسل قولي دي که تقدير په کې کوي بدعاء يزيد بن الاسود نو بيا فعلي جوړيږي.

دا روايت الاصابة في معرفة الصحابة هم ذکر کړي جلد ۳ صفحه ۶۳۴ او تاريخ دمشق د ابن عساکر هم ذکر کړي جلد ۶۵ صفحه ۱۱۱.

## اتم توسل په قول د حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنهُ:

صحيح البخاري جلد ۱ صفحه ۱۳۲:

حدثنا عمرو بن علي قال حدثنا ابو قتيبة قال حدثنا عبد الرحمن بن عبد الله بن دينار عن ابيه قال سمعت ابن عمر يتمثل بشعر ابي طالب. وامي وريدل د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه.

يتمثل اى ينشد. چې انشاديې کوه په شعر د ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنهُ سره.

يوه انشاء ده بل انشاد ، انشاء جوړولو د شعر ته ويلې شي او انشاد د بل چا شعر خپل ترنم کې زمزمه کولو ته ويلې شي ، نچوړ د شعر دا دي :

وابيض يستسقى الغمام بوجهه ❁ ثمال اليتامى عصمة للارامل

نبي عليه السلام د سپين مخې والا دي وريځ چې کومه ده باران کوي .

بوجهه بوسيلة وجهه . دده د مخ د خاطره وريځ باران کوي .

ثمال اليتامى أي مطعم . د يتيمانو دی او د کونډو ساتونکي دي .

نو يستسقى الغمام بوجهه دا بام سببيه ده وريځ باران کوي بوجهه ای بسبب ذاته .

## نهم توسل په قول د ابي عبيده ابن الجراح رضي الله عنه :

فتوح الشام جلد ۱ صفحه ۱۷۹–۲۲۰ ، دې کې ابي عبيده رضي الله عنه يزيد بن ابي سفيان رضي الله عنه ته د يو لښکر مشري ورکوي ليږي يې سره د پينځه زره کسانو :

وامره ان يلحق بخالد رضي الله عنه الى بيت المقدس .

د حضرت خالد رضي الله عنه به ملګري شي بيت المقدس ته به لاړ شي .

وقال له يا ابن ابي سفيان ما علمتك الا ناصحا فاذا اشرفت على بلد ايلياء .

ابي عبيده رضي الله عنه يزيد بن ابي سفيان راغواړي نصيحت ورته کوي ورته وايي کله چې نه د پنځه زره لښکر سره د بيت المقدس ښاريه باندې ورښکاره شوي .

فارفعوا اصواتكم بالتهليل والتكبير . اوچت کړي آوازونه په لا اله الا الله سره او په تکبير سره دا چغې وهي په ښاريه ورشي واسألوا الله او د خداى تعالى نه دعاء ګانې وغواړي .

بجاه نبيه . په جاه د محمد مصطفى صلى الله عليه وسلم باندې .

ومن سكنها من الانبياء والصالحين .

او په جاه د هغه انبياء کرامو چې بيت المقدس کې اوسيږي دفن دي او څومره اولياء چې دي په دا ټولو اولياء باندې وسيله ونيسي بيا پرې ورشي :

ان يسهل فتحها على ايدى المسلمين .

نو مجاهدينو ورونو ته دا په کار دي چې د صحابه وو دا طريقه خپله کړي خپلو اسبابو او ټريننګونو باندې غره نه شي چې ګنې ما جديد ټريننګ ياد کړي زه به په ټريننګ د هغوي مقابله کومه.

اعدوا لهم ما استطعتم.

ښه خبره ده يو ټريننګ په کار دي خو غره کيدل په ټريننګ نه دي په کار هر وخت کې کفار د مسلمانانو نه په آلات ظاهريه او ټريننګونو کې مقدم وي کوم ټريننګ چې هغوي کړې دي زمونږ د مجاهدينو ټريننګ هغې ته نه شي رسيدلې که د خالق امداد ترې نه لرې شي نو په هرو اسبابو مونږ کمزورې يو خو دا محضې د خالق امداد دي چې د دې عظيم کافر مقابله کې غريب مجاهدين په کمزورو اسبابو باندې جنګيږي خو په کار دادي چې د صحابه وو طريقه اختيار کړي هر ولايت ته چې ځي په هغه ولايت کې چې معروف اولياء وي که حيات وي که وفات وي د هغوي په ذات دې توسل نيسي بيا دې جهاد کوي.

داد صحابه کرامو طريقه ده او پنځه زره لښکر تياريږي يزيد بن ابي سفيان ته يې لاس کې ورکوي په طرف د بيت المقدس او اوه زره (۷۰۰۰) لښکر خالد بن وليد مخکې بيولې دي نو دا دولس زره کسان جوړيږي. بيا تعليم ورته کوي چې کله ورننوځي نو تاسې لا اله الا الله وايي الله اکبر وايي او : واسألوا الله بجاه نبيه. وسيله په ذات د نبي ونيسي.

## لسم وسيله په قول د حضرت عبد الله بن جعفر رضي الله عنه:

دا هم فتوح الشام ذکر کړي جلد ۱ صفحه ۷۶، په دې کې عبد الله بن جعفر دعاء کوي:

فضاق لذلك ذرعه وما نزل به في نفسه مثل ما نزل بالمسلمين فألجأ الى الله تعالى امره و فوض الى صاحب السماء شأنه ورفع يده الى السماء وقال في دعائه يا من خلق خلقه وابلى بعضهم ببعض وجعل ذلك محنة لهم أسألك بجاه محمد النبي صلى الله عليه وسلم الا ما جعلت لنا من امرنا فرجاً ومخرجاً ثم عاد الى القتال واصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم يقاتلون معه تحت رايته.

تلك عشرة كاملة

هغه مخکې مرفوع هم لس وه دا هم لس شول.

فهذه اقوال الصحابة رضوان الله تعالى عليهم اجمعين وارائهم الذين قال الله في حقهم والسابقون الاولون من المهاجرين والانصار والذين اتبعوا هم باحسان رضي الله عنهم ورضوا عنه .

مونږ الحمد لله قوي روايات لرو د اسلافو متقدمينو كتب پيش كوو .

دا فتوح الشام څه د پاسه دولس سوه كاله مخكې تير شوې دي ده سره مخكې هم تعصب شوې دي شاه انور شاه صاحب فيض الباري كې وايي علت د جرحې په واقدي څه دي چې دا ډير عمده سړي دي خلك پرې جرحې كوي وايي د هغې وجه دا وه چې دې متمذهب بمذهبٍ نه وه او دا رشتيا يقيني خبره ده چې كله يو پارټي كې نه وي نو هره پارټي به درپسې نښتې وي مخالفت به دې كوي خبرې به درپسې كوي .

هغه وخت سره چې څو مره سياسي پارټيانې جوړې وي نو واقدي صاحب يوې سره هم نه وه يو خوا عبد الله بن زبير يا دې نه بعد بنوا عباس وه بل خوا ته بنوا اميه وه دې يو سره هم نه وه د يو جانب علماء دي مجروح ه وه چې دې ولې زمونږ ملګرې نه دي د بل جانب علماء هم دي مجروحه وه چې دې ولې زمونږ ملګرې كيږي نه .

لكه اوس پاكستان كې دوه لوي پارټي جوړې دي ديوبند او بريل داد مدرسو نومونه وه اوس خلكو ترې نه مذهبونه جوړ كړل مسلكونه يې ترې جوړ كړل يو خوا وايي مسلك ديوبند زنده باد ، نو ديوبند مدرسه ده مسلك ورته مه وايي .

دا نور وايي مسلك بريل زنده باد ، يو بريلوي ما ته يو خط راليږلي وه هغه كې يې ليكلي وه : واي بريل فصل مميز دي په پاكستان كې او دې علاقو كې چې څوك بريلوي وي نو مسلمان دي اهلسنت دي ګنې سره اهلسنت نه دي مونږ اهلسنت نه شو دې اهلسنت شو دې شيعه دي اهلسنت شو او مونږ اهلسنت نه شو عجيبه خبره ده ټول بريلويان نه يادوم خو څه خلك بريلويانو كې شيعه ګانو ته كار كوي نو هغې ته بيدار شي .

دلته هم اوس دا كار دي كه ته په ديوبند كې داخل شوې او چغې دې كړې چې ديوبند زنده باد بس بريليان خو دې هسې هم نه مني چې د بزرګي بنكر دې هم وشي خو داده چې هغه ديوبنديان درباندې رد نه كوي وايي ديوبندي دي .

او كه بريلوي شي هم دغسې ده ديوبنديان به دې نه مني ولو كه څو مره بزرګ شي هم خو دومره خبره ده چې خپل بريالويان خو به دې تائيد كوي نو جرحه درباندې كيږي .

د باړي حضرت صاحب باندې د جرحې بنيادي وجه دا وه چې هغه به چغې وهلې چې نه ديوبندي يم نه بريلوي يم ديوبنديان يې هم مخالف شول بريالیان يې هم مخالف شول نو اوس چې هغه دا خبره کړي چې نه ديوبندي يم نه بريلوي يم نو کفر خو يې نه دي کړي.

ديوبند او بريل کې ننوتل څه فرض وه يا دا څه عقيده وه يا څه مذهب وه يا څه د طريقت نومونه وه چې خامخا به سړي ځان ته ديوبندي او بريلوي وايي.

خبره يې ډيره ښه کړې وه خو اوس خبره يې داسې وکړه چې ديوبندي يې هم دشمن جوړ شو چې ولې ديوبندي ځان ته نه وايي او بريلوي يې هم دشمن جوړ شو چې ولې بريلوي ځان ته نه وايي .نو چې ما فيض الباري کې د امام واقدي په باره کې دا وليدل چې دې متمذهب بمذهب نه وه دې به يوه ډله کې ننوتو نه ځان ته به مستقل وه چې ډلې به يې وليدې چې سياسي به وي که هر څه به وي دې به يو طرف ته شو ترې نه.

بس د هغه ټولو مقابل کې به شو نو هر چا به پرې اعتراض کوه نو امام واقدي باندې لويه وجه د جرحې دا ده چې دده ملګرې به نه وه. او ما باندې هم دا جرحې ډيرې دي وجه يې همدغه ده چې زه نه ديوبندي يم او نه بريلوي يم نو دوي دواړه جرحې کوي چې ته بريلوي يا. ديوبندي ولې نه يې چې ديوبند کې څه چل دي نو زه خو نه وايم چې څه چل دي په کې يا ديوبنديان بد خلک دي خو زه نه يمه په کې.

بس زه ديوبند ته مسلک نه وايم نو ديوبندي نه يم او که د نسبت خبره شي چې استاذان دې څوک دي استاذان مې د ديوبند علماء پاتې شوي هغه نسبت جدا خبره ده کله به يې سړي کوي يو شيخ ته نسبت ځان ته به سيفي وايي کله به يې يو استاذ ته کوي ديوبندي به ځان ته وايي کله به يې امام د مذهب ته کوي حنفي به ځان ته وايي دا بيله خبره ده خو دا چې دې زمانه کې ترې خلکو مسلک جوړ کړ او دا يې کړه چې خامخا مسلمان يې ديوبندي به يې که ديوبندي نه يې نو مسلمان به نه يې .بس مونږ اوس دې ته مجبور شو چې چغې کړو چې مونږ ديوبنديان نه يو اخوا بريالیانو دا فصل مميز جوړ کړه چې بريلي نه يې نو مسلمان د سره نه يې هغوي هم دې ته مجبور کړو چې ووايو مونږ بريلويان نه يو نه مې استاذ بريلوي دي نه مې شيخ بريلوي دي نه مې د بريل په مدرسه کې سبق ويلې دي نو زه په کوم معنی ځان ته بريلوي ووايمه.

# المبحث الخامس : تحقيق الوسيلة عند عامة المصنفين والمحدثين والفقهاء الحنفين :

## د احنافو فقهاء د اقوالو په رڼا کښې د وسيلې ثبوت :

مجمع الانهر في شرح ملتقى الأبحر جلد ۳ صفحه ۴۳۹ دي د بعضې علماء پسې او عوامو پسې چې هغوي د مسخرو په مجالسو کې غيبتونو وغيره وو کې مصروف وي.

او فرق د خواصو د عوامو سره په مجلس کې نه کيږي په دغه شان ته خواصو رد کوي الفاظ يې دادی :

**ثم يشتغلون طول النهار بالسخرية والغيبة والوقوع في الناس وغيرها مما يستحقون به.**

بيا لا مشتغل وي ټول ورځ په مسخرو غيبتا و د خلکو په حالاتو کې.

او س آخر کې دې ذعاء ورته کوي :

**اصلحهم الله تعالى.** خدای دې دغه علماء صالحه کړي.

**اصلحهم الله تعالى وايانا بجاه نبيه.**

مونږ دې يو ټکي نه اخذ کوو دا چې فقهي حنفي دي بالفعل په خپله په ذات د نبي عليه السلام وسيله نيسي.

حاشيه رد المختار جلد ۴ صفحه ۲۹۴ :

**دام في عزٍ وانعام ومجدٍ واحترام بجاه من هو للأنبياء ختام واله وصحبه السادات الكرام.**

صاحب متن يادوي خدای تعالى دی په عزت په انعاماتو په بزرګي او احتراماتو کې وساتي.

**بجاه من هو للانبياء ختام.** په جاه د هغه ذات باندې چې هغه د ټولو انبياء ختم دي او په جاه د اهل د هغه باندې او په جاه د تمامو صحابه وو باندې چې هغه سادات الکرام دي.

نو دا توسل دي په نبي عليه السلام او په ال د هغه او په ټولو صحابه کرامو باندې.

دارنګې الدر المختار جلد ۱ صفحه ۸۴ دا هم په دې ابتداء کې دعاء کوي :

**فنسأل الله تعالى التوفيق والقبول بجاه الرسول.**

دارنګې مراقي الفلاح جلد ۱ صفحه ۲۱۸ دعاء کوي :

**نسأل الله تعالى من فضله العفو والعافية بجاه سيدنا محمد ﷺ .**

دارنګې په آخره کې بیا مراقي الفلاح جلد ۱ صفحه ۲۹۶ بله دعاء کوي :

**وفقنا الله تعالى بفضله ومن علينا بالعود الى احسن حال اليه بجاه سيدنا محمد ﷺ .**

دارنګې فتح القدير جلد ٦ صفحه ۲۴۹ د حج په باب کې فتح القدير مدينې منورې ته چې لاړ شي تا ته الفاظ د دعاء ښايي ته به هلته څه وايي :

**يا رسول الله اسئلك الشفاعة يا رسول الله اسئلك الشفاعة واتوسل بك الى الله في ان اموت على ملتك وسنتك .**

وايي دا طريقه به هلته اختيار وي باقي دې كه كوم ضروريات وي نو بيا طريقه درښايي.

**اسأل الله تعالى حاجته .**

ځو مره حاجتونه چې دې وي د خالق نه هلته دعاء وغواړه **متوسلاً الى الله بحضرة نبيه عليه الصلاة والسلام .**

دارنګې بحر الرائق جلد ۱ صفحه ۴ :

**واسأله سبحانه وتعالى متوسلاً اليه بمن صلاته عليه تتوالى ان يلهمني الصواب وان يسلك بي سبيل السداد .**

سوال کوم د باري تعالى نه په حال کون زما کې چې وسيله نيوونکي يم ده ته .

**بمن صلاته عليه تتوالى .**

چې هميش پرې درود په کار دې چې ما ته د صواب او حقې لارې القاء وکړي .

همدغه صفحه کې وروسته نوره دعاء کوي وايي :

**وكما احسن لي المبدأ يحسن لي الختام بحرمة نبيه عليه الصلاة والسلام .**

لکه اوله ابتداء ما ته ښکلي کړه غواړم ورنه دا چې ما ته ختم د کتاب هم حسن کړي د

نبي عليه السلام په خاطر سره .
دارنګې رد المختار جلد ۱ صفحه ۱۹۶ :

**وکذا يقول اسير الذنوب جامع هذه الاوراق راجيا من مولاه الكريم متوسلاً بنبيه العظيم وبكل ذي جاه عنده تعالى ان يمن عليه كرماً .**

مصنف په خپله لګيا دي وايي هغه څوک چې ګناهو کې راګير دي .... څوک دي چې جامع ددې اوراقو دي هغه څوک دي چې اميد ساتي مولا کريم لره هغه څوک دي چې وسيله ورته په نبي عليه السلام سره نيسي دارنګې وسيله نيسي بکل ذي جاهٍ عنده تعالى .

دارنګې حاشيه ردالمختار جلد ۱ صفحه ۴ :

**واني اسأله تعالى متوسلاً اليه بنبيه المكرم صلى الله عليه وسلم وباهل طاعته من كل ذي مقام علي معظم وبقدوتنا الامام الاعظم .**

سوال ورته کوم په حال کون زما کې چې وسيله ورته نبي عليه السلام پيش کومه وسيله ورته کل د طاعاتو والا تابعدار خلک پيش کومه چې لوي مقام لري .

**وبقدوتنا الامام الاعظم متوسلاً اليه بنبيه ومتوسلاً اليه بقدوتنا الامام الاعظم ان يسهل علي ذلك من انعامه .**

دا يې دعاء ده .
شرح غرر الحکم جلد ۲ صفحه ۲۴۳ :
دارنګې درر الحکام شرح غرر الحکام جلد ۳ صفحه ۲۴۳ :

**والله سبحانه وتعالى اسأل وبنبيه صلى الله عليه وسلم اتوسل ان ينفعني والمسلمين به النفع العميم .**

سوال د باري تعالى نه کوم وسيله ورته نبي عليه السلام پيش کوم چې نفعه راکړي په دې کتاب ما لره او عامه مسلمينو ته .

دارنګې طحطاوي جلد ۲ صفحه ۸ :

**روى سعيد بن منصوره وثمرة ابن حبيب وحكيم بن عمير قالوا اذ سوي على الميت قبره .**

کله چې مړي باندې د هغه قبر برابر کړي شي .

وانصرف الناس . خلک راوګرځيږي .

كانوا يستحبون . دوي مستحبه ګڼله .

ان يقال للميت عند قبره . چې مړي قبر کې کيخودلې شي او دې مړې ته وويلې شي :

يا فلان قل لا اله الا الله ثلاث مراة .

دا تلقين دي داد بره نه کيږي هغه دفن شوې دي .

يا فلان قل لا اله الا الله ثلاث مراة يا فلان قل ربي الله وديني الاسلام ونبي محمد صلى الله عليه وسلم اللهم اني اتوسل اليك بحبيبك المصطفى ان ترحم فاقتي بالموة الاسلام والايمان وان تشفع فينا نبيك عليه افضل الصلاة والسلام .

دارنګې مراقي الفلاح جلد ۱ صفحه ۲۹۸ دې کې د نبي عليه السلام او د يارانو د سلام طريقه ښايي يارانو ته به وذريږي وايي به :

السلام عليكما يا ضجيعي رسول الله ورفيقيه ووزيريه ومشيريه والمعاونين له على القيام بالدين والقائمين بعداً بمصالح المسلمين جزاكما الله احسن جزاء جئنا كما نتوسل بكما الى رسول الله صلى الله عليه وسلم ليشفع لنا ويسأل الله ربنا ان يتقبل سعينا .

باقي نوره دعا هم شته .

دارنګې فقه العبادات جلد ۱ صفحه ۲۰۷ دې کې هم د زيارت طريقه درښايي :

يا رسول الله نحن وفدك وزوار قبرك جئناك قاصدين قضا حقك والتيمن بزيارتك والاستشفاع بك الى ربنا .

آخره کې به وايي :

الشفاعة الشفاعة الشفاعة يا رسول الله .

که چا سلام ور کړې وي هغه به پيش کړي .

يبلغه السلام من اوصى فيقول السلام عليك يا رسول الله من فلان بن فلان يستشفع بك

الى ربك فاشفع له ولجميع المسلمين.

دارنګې مجمع الانهر في شرح ملتقى الابحر جلد ۹ صفحه ۴۴۰:

اللهم اجعله لي ذخراً نافعاً وخيراً باقيا.

یا الله وګرځوي دا کتاب زما د پاره د خیر ذریعه نافعه خیر باقي.

بحرمة جميع الانبياء والمرسلين. په حرمت د ټولو انبياء او رسولانو باندې.

خصوصاً بحرمة حبيبك محمد ن المصطفى.

خاصتاً په حرمت د حبيب ستا چې محمد مصطفى ﷺ دي.

دا ټول چې ما ذکر کړل بالفعل توسلات د فقهاو دي بالفعل يې په کتبو کې نيولې دي د يو چا قول يې نه دي نقل کړي نو دوي بالفعل توسلات نيولې دي.

دارنګې نور الايضاح صفحه ۸۶ د روضې مبارکې د سلام طريقه درته ښائي:

جزاكما الله احسن الجزاء جئنا كما نتوسل بكما الى سيدنا رسول الله ﷺ ليشفع لنا ويسأل الله ربنا ان يتقبل سعينا ويحيينا على ملته ويميتنا عليها ويحشرنا في زمرته ثم يدعو لنفسه ولوالديه ولمن اوصاه بالدعاء ولجميع المسلمين.

دارنګې فتاوى عالمګيري جلد ۶ صفحه ۴۱۱ طريقه د زيارت د روضې درته ښائي:

جزاكما الله احسن الجزاء جئنا كما نتوسل بكما الى رسول الله ﷺ ليشفع لنا.

اى يارانو تاسو ته راغلي یم دې د پاره چې تاسو زما سفارش نبي عليه السلام ته وکړي مونږ تاسې وسيله کې پيش کوو چې هغه زمونږ شفاعت وکړي.

دې نه وروسته د فقه حنفي نه د يو اعتراض جواب چې مخکې مونږ ورته اشاره کړې وه چې:

كره ان يسئل بحق فلان.

يا: لا ينبغي ان يسئل بحق فلان.

هدايه کې لفظ د کره راغلی او بعضې کتب لفظ د لا ينبغي ذکرکوي نو د هغې تطبيق دادی چې کره محمول کړه په کراهيت تنزيهي باندې نو د جواز ترجمه ترې کيږي دليل

وړباندې لفظ د لاينبغي د فقهاوشو او کومو فقهاو چې جواز ویلی دي او چا مکروه ویلي دي تطبیق به یې داشي چې په حق د عوام الناس کې لفظ د حق استعمالول دي مکروه شي.

توسل پنځه الفاظ لري:

**نتوسل اليك (١) بجاه فلان ، (٢) بحق فلان ، (٣) بحرمة فلان ، (۴) بوسيلة فلان (٥) بفلان .**

نو دا لفظ د حق دي په حق د عوامو کې مکروه شي فرق نه شي کولی په مینځ د حق وجوبي او تفضلي کې او کومو فقهاو چې جائز ګڼلي دي په حق سره سوال هغه دي محمول شي په حق د خواصو کې چې علماء او مشائخ دي چې هغوي پوهیږي د تفضلي او حق وجوبي فرق کولی شي اصلاً لکه څنګه چې امام ترمذي لیکي چې فقهاء مجتهدین عالمین دي بمعاني الحديث نو دا شان فقهاء اصحاب الفتياء متاخرين فقهاء دوي اعلم دي په اقوالو د فقهاء سابقينو باندې زمونږ نه سلفو کې د يو فقيه قول پيدا شي خلف کې بيا ګوره چې هغه فقهاء دي باره کې څه وايي.

طحطاوي جلد ٢ صفحه ٣٩۴ دغه اعتراض نقلوي چې هدايه کې دا راغلي دي:

مکروه دي سوال بحق الغير هغه حديث د ضرير البصر پيش کوي:

**اني توجهت بك الى ربي .**

بيا وايي:

**يشكل هذا على ما انه قالوه يكره للرجل ان يقول .**

اشکال واقع شو په دې روایت کې په هغه قول د فقهاء باندې چې وایي مکروه دي سړي ته چې ووايي: **اللهم اني اسألك بأنبيائك .**

طحطاوي صاحب وايي:

**واجيب** . زه جواب ورکوم.

**بان السماء خص هذا** ، شريعت په حق د نبي عَلَيْهِ السَّلَام کې دا دعاء خاص کړې ده.

يو جواب يې دا وکړو چې **اسألك بانبيائك** دا نور انبياء یاد وي او زمونږ شریعت سوال

بحق النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لکه روایاتو کې تیر شو ثابت کړې دي نو دا جائز دي .

والحق عدم الخصوصية ، حق دا چې خاص هم د نبي عَلَيْهِ السَّلَام پورې نه دي .

لما ورد في استسقاء عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بالعباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ.

هغه د عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په استسقاء کې په عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ توسل نیولې دي نو توسل تر انبیاء خاص نه شو صلحاء هم پیش کیږي .

وما قيل في وجه الكراهية انه لا حق لاحد على الله فيه نظر .

چا چې دا وجه ویلې دي چې مکروه ځکه دي چې د مخلوق په خالق حق نشته ، فیه نظر ، په دې کې اعتراض دي .

لان للعباد المخلصين عليه حق . د مخلصو عبادو خالق باندې حق شته .

فضلاً منه وكرم . حق تفضلي خو شته کنه حق وجوبي نشته .

نو دغه عباراتو باندې زمونږ نورو فقهاو هم اعتراضونه کړي دي او ما تطبیق وکړو چې حق وجوبي نشته حق تفضلي خو شته دي .

په بخاري کې دا حدیث موجود دي :

من آمن بالله و برسوله واقام الصلاة واقام رمضان كان حقا على الله ان يدخل الجنة.

او دارنګې :

﴿وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ رُسُلًا إِلَىٰ قَوْمِهِمْ فَجَاءُوهُم بِالْبَيِّنَاتِ فَانتَقَمْنَا مِنَ الَّذِينَ أَجْرَمُوا وَكَانَ حَقًّا عَلَيْنَا نَصْرُ الْمُؤْمِنِينَ﴾ (سورة روم آيت : ٤٧)

نو حق خدای تعالی د مخلوق په ځان ثابت کړې دي خو حق تفضلي وجوبي نشته دغه لفظ کې شبهه چې د وجوب د حق ده او د مخلوق په خالق وجوبي حق نشته دې نه بعضې فقهاء محققین دي لفظ ته مکروه ویلي دي شرک او کفریې ورته نه دي ویلې او مکروه هم تنزیهي ځکه د لفظ د لاینبغي نه پته لږي .

دارنګې رد المختار جلد ۲۷ صفحه ۴ باندې ذکر کوي :

كره قوله بحق رسولك .

دعاء بحق رسولك مكروه دي او دې وايي :

وفي التاتارخانية : جاء في الآثار ما دل على الجواز .

فتاوى تاتارخانيه دا ذکر کړې دي په حديثو کې هغه روايات چې دليل د جواز دي او دا مونږ مخکې پيش کړي په حق سره دعاء شوې ده .

لانه لا حق للخلق على الخالق .

چا چې مکروه ويلي دا دليل يې ويلې وايي د مخلوق په خالق حق نشته .

قد يقال انه لا حق لهم وجوباً على الله .

ويلې شي جواب کې چې وجوبي حق نشته .

لكن الله سبحانه تعالى جعل لهم حقا من فضله .

فضلي حق يې ځان لپاره ثابت کړې دي يا دې داسې وشي چې چا سؤال بحق الرسولك ويلي مراد دي له حق نه الحرمة والعظمة حرمة فلان دي ترې مراد شي .

فيكون من باب الوسيلة .

دا به وسيله شي .

قد عد من آداب الدعاء التوسل .

شمار کړي دي علماء له آدابو د دعاء نه وسيله نيول .

دارنګې رد المختار جلد ۲۷ صفحه ۵ د امام سبکي قول نقلوي دا معصر د ابن تيميه دي :

قال السبكي يحسن التوسل بالنبي الى ربه .

نبي عليه السلام باندې وسيله رب کريم ته ښه کار دي .

لم ينكره احد من السلف ولا خلف . الا ابن تيمية فابتدع ما لم يقله عالم قبله .

سلفو او خلفو کې دې نه چا انکار نه دي کړي مګر ابن تيميه نوي قول يې پيدا کړې دده

نه مخکې چا پرې قول نه وه کړې .

دا رنګې بحر الرائق چې کوم معرب دي جلد ۲۲ صفحه ۲۰۸ هغې کې هم د بحق فلان دعاء چې کوم ورته مکروه ویلې شوې د هغې وجه بیانوي ځکه د مخلوق په خالق حق نشته .

البته الما يخص برحمته من يشاء من غير وجوب عليه .

بعضې عباد مختاره وي حق وجوبي نه ورکوي .

## المبحث السادس : تحقيق الوسيلة في ضوء أقوال الفقهاء الشافعين:

اعانة الطالبين جلد ۱ صفحه ۲۹ :

فنسأله سبحانه وتعالى ان يمتعنا واهلنا واحبابنا وسائر المسلمين بالنظر الى وجهه الكريم بجاه نبيه عليه افضل الصلوة واتم التسليم .

سوال د خدای تعالی نه کوو چې مونږ ته راکړي اهل زمونږ احبابو ټولو مسلمانانو ته ورځ د قیامت کې دیدار خپل په خاطر د نبي عليه السلام .

دغه کتاب کې مصنف علامه دمياطي جلد ۱ صفحه ۱۵۲ کې بله دعاء کوي :

رزقنا الله الاخلاص والنجاة حين لا مناص وجعلنا من عباده الصالحين بجاه سيدنا محمد افضل الخلق اجمعين .

همدغه کتاب اعانة الطالبين جلد ۱ صفحه ۳۱۳ کې بله دعاء کوي :

ارجو الله الكريم المنان بجاه سيدنا محمد سيد وُلد عدنان ان يرزقنا رضاه وان يصحح منا ما افسدناه ان يمن علينا بقربه.

د الله نه امید ساتم هغه منان دي په جاه د سردار خپل چې هغه سید وُلد عدنان دي چې راکړي مونږ ته رضا خپله مونږ چې کوم فساد دین کې جوړ کړي هغه خپله صالحه کړي په خپل قربت باندې په مونږ احسان وکړي .

بیا اعانة الطالبين جلد ۲ صفحه ۷۸ کې بله دعاء ذکر کوي :

رزقنا الله التقوى والاستقامة واعاذنا من موجبات الندامة بجاه سيدنا محمد المظلل بالغمامة.

دارنګې اعانة الطالبين جلد ۲ صفحه ۱۰۷ کې ذکر کوي:

واعاذنا من العجز والكسل عن مواظبته بجاه سيدنا محمد ﷺ وآله وصحبه.

دارنګې اعانة الطالبين جلد ۲ صفحه ۱۶۴ کې بله دعاء ذکر کوي:

نسأل الله أن يمن علينا بالشهادة ويمنحنا الحسنى وزيادة ويرزقنا التقوى والاستقامة بجاه سيدنا محمد ﷺ المظلل بالغمامة.

دارنګې همدغه کتاب جلد ۲ صفحه ۲۸۹ کې بله دعاء ذکر کوي:

فنسأل الله الكريم المنان أن يجعلنا ممن حافظ على حدود صيام رمضان ففاز بالفردوس والجنان والقصور والحور العين والحسان بجاه سيد ولد عدنان.

دادده د دعاء الفاظ دي دا څو ځایه ده په خپل کتاب کې توسل په ذات د نبي علیه السلام نیولې دي.

دارنګې حواشي الشرواني جلد ٦ صفحه ۳۸۱ کې:

وأسأله تعالى الاعانة الاتمام بجاه محمد سيد الانام.

د الله نه مدد غواړم په اتمام د کتاب په جاه د محمد ﷺ.

دارنګې حواشي الشرواني جلد ۸ صفحه ۴۳۲ کې ذکر کوي:

نسأله حسن الختام بجاه سيدنا محمد عليه وآله وصحبه الصلاة والسلام.

دارنګې نهاية المحتاج الى شرح المنهاج د امام نووي د منهاج شرحه ده جلد ۱ صفحه ۳ کې دعاء ذکر کوي:

ونفعنا والمسلمين ببركته بجاه محمد وآله وعترته.

الله پاک دې نفعه راکړي مونږ ته او مسلمانانو ته په برکت دده سره یو عالم ته اشاره کوي په جاه د محمد ﷺ په وسیله د آل دده په وسیله د عترة د هغه.

دارنګې جلد ۱۷ صفحه ۴۷۱ کې هم دعاء کوي:

حرسها الله تعالى من كل سوء بجاه محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ .

دارنګې جلد ۱۹ صفحه ۱۴ کې هم دعاء کوي :

واسأله الاعانة على الاتمام بجاه محمد سيد الانام و مصباح الظلام .

دارنګې جلد ۲۹ صفحه ۴۷۷ کې هم دعاء کوي :

والله اسأل وبرسوله أتوسل .

دارنګې حاشية الجمل جلد ۳ صفحه ۴۹۳ کې دا ذکر کوي :

آدم فمن بعده من الانبياء كل منهم يتوسل به الى الله سبحانه وتعالى .

آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ او د هغه نه وروسته ټومره انبياء چې دي دا ټول توسل نيسي خداى تعالى ته په نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ باندې .

دارنګې حاشية البجيرمي على الخطيب جلد ۵ صفحه ۴۸۸ د دې ځاي شرحه کوي :

انا نتوسل اليك بعم نبيك فاسقنا وحكمة توسله به دون النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ .

د عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د غه ځاى کې وسيله په تره د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه په نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ .

مع انه اعظم وسيلةً حياً وميتاً .

سره د دې چې اعظمه وسيله نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دي که دنيا کې وي که برزخ کې دي نو وايي حکمت دې کې :

الاشارة الى رفعة قرابة رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وقربهم من الله .

دا يې خلکو ته خوده چې خپلوان او خپلولي د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دا قرابت د دوي شان هم اوچت دي .

دارنګې المجموع شرح المهذب د امام نووي رَحِمَهُ اللهُ جلد ۸ صفحه ۲۷۴ مدينه منوره کې چل دربنايي :

ثم يرجع الى موقفه الاول قبالة وجه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ .

د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ مخ مبارک چې کوم طرف ده هغه ځاى ته به راشي وبه دريږي .

ويتوسل به في حق نفسه ويستشفع به الى ربه سبحانه وتعالى .

وسيله به ونيسي په نبي عليه السلام دځان باره کې او شفاعت کې به دې پيش کړي.
بيا واقعه ذکر کوي چې دلته به څه وايي :

ومن احسن ما يقول ما حكاه الماوردي والقاضي ابوالطيب وسائر اصحابنا عن العتبي مستحسنين له قال كنت .

احسن هغه دي چې دلته ووايي هغه الفاظ چې ماوردي قاضي ابو طيب او ټولو ائمه وو زمونږ د عتبي نه روايت کړي مستحسنين له سند يې حسن دي .

قال كنت جالساً . عتبي وايي زه ناست وم .

عند قبر رسول الله صلى الله عليه وسلم .روضې سره .

فجاء اعرابي . يو بدوي راغې .

فقال السلام عليك يا رسول الله سمعت الله يقول ولو انهم اذ ظلموا انفسهم جاءوك فاستغفروا الله واستغفر لهم الرسول لوجدوا الله توابا رحيماً . وقد جئتك مستغفراً من ذنبي مستشفعاً بك الى ربي ثم انشأ يقول :

| | |
|---|---|
| يا خير من دُفنت بالقاع أعظمه | فطاب من طيبهن القاع والأكم |
| نفسي الفداء لروض أنت ساكنه | فيه العفاف وفيه الجود والكرم |

د شعر ترجمه : يا هغه څوک ځمکې او ډاګونو د هغه وجود د فن کړي دي اى غوره هغه چا چې د هغه د خوشبوي نه دغه علاقه ټول کورونه ډاګونه او چتې غونډې ګاني ټولې خوشبوي دي .

کوم ځای کې چې تاسو ياستې هغې نه مې دا ځان قربان شه په هغې کې عفاف دي په هغې کې کرم دي په هغې کې جود دي .

ثم انصرف ، دا اعرابي لاړ ، امام عتبي وايي :

فحملتني عيناي ، سترګې مې پټې شوې .

فرأيت النبي صلى الله عليه وسلم في النوم ، په خوب کې مې نبي عليه وسلم وليد .

فقال : وي ويل : ياعتبي الحق الاعرابي ، اى عتبي پاخه لاړ شه اعرابي ته ، فبشره ، زيرې ورکړه :

بان الله تعالى قد غفر له .

امام نووي رَحِمَهُ اللهُ په مجموع شرح مهذب کې دغه ځای کې دا ليکي چې احسن الفاظ روضې سره چې څوک ووايي دا الفاظ دي :

يا خير من دفنت بالقاع أعظمه فطاب من طيبهن القاع والأكم

﴿وَلَوْ أَنَّهُمْ إِذ ظَّلَمُوا أَنفُسَهُمْ جَآءُوكَ﴾. سورة نساء پاره ۵ .

په دغه ځای باندې تفسير ابن کثير دا الفاظ او د عتبي دا واقعه يې نقل کړې ده دغه واقعه د عتبي او اعرابي حاشية الجمل ذکر کړي جلد ۹ صفحه ۲۵۶.

تفسير ثعلبي را اخيستې جلد ۱ صفحه ۳۲۴

او تفسير ابن کثير را اخيستې جلد ۲ صفحه ۳۴۷

معجم ابن عساکر را اخيستې جلد ۱ صفحه ۳۶۳

شرح الکبير د ابن قدامه را اخيستې جلد ۳ صفحه ۴۹۴

تفسير الوسيط لسيد طنطاوي جلد ۱ صفحه ۹۸۵

مغني د ابن قدامه ذکر کړي جلد ۷ صفحه ۴۲۰

المبدع شرح المقنع ذکر کړي جلد ۴ صفحه ۲۵۱

د امام عتبي رَحِمَهُ اللهُ دغه واقعه چې زه ناست وم اعرابي راغې دا الفاظ او دا اشعار يې وويل ما ته نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ خوب کې وويل چې ببننه ورته شوې ده زيرې ورکړه .

دارنګې الحاوي الکبير د ماوردي جلد ۴ صفحه ۵۴۴ دې کې د رحمت عالم د زيارت او سلام ذکر کوي او بيا هغه واقعه ذکر کوي :

فاما زيارة قبر النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فمأمور بها ومندوب اليها .

د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د روضې سلام مامور بها دي او د امندوب دي .

روى عبيد الله عن نافع عن ابن عمر عن النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انه قال من زار قبري وجبت له شفاعتي . بيا هغه قصه د عتبي ذکر کوي .

# المبحث السابع : تحقيق الوسيلة في ضوء أقوال الفقهاء المالكين:

شرح مختصر خليل جلد ۱ صفحه ۲۴۳ دعاء کوي :

**والحمد لله الكريم الوهاب العطايا ومسبب الاسباب نتوسل اليك بجاه الحبيب ان تبلغ المقاصد عن قريب فانك قريب مجيب .**

دا يې دعاء ده او په دې کې الفاظ د توسل دي .

دغه کتاب جلد ۹ صفحه ۱۴۰ کې بيا تصريح ذکر کوي :

**واما التوسل ببعض مخلوقاته فجائز .**

وسيله په بعضې مخلوق جائزه ده .

**اما الاقسام على الله تعالى في الدعاء ببعض مخلوقاته كقوله بحق محمد اغفرلنا فخاص به صلى الله عليه وسلم .**

اقسام خاص دي تر نبي عليه السلام خالق ته په مخلوق قسم ورکول وايي دا خاص دي تر نبي عليه السلام په نبي عليه السلام ورکولې شي په بل چا يې نه شي ورکولې .

مسئله د اقسام جدا ده له توسل نه ځکه چې وايي روح المعاني کې په توسل رد کړې وايي هغه رد په اقسام باندې دي په توسل نه دي توسل کې خو خپله وايي :

**انا لا أرى بأساً في التوسل الى الله تعالى بجاه النبي صلى الله عليه وسلم عند الله تعالى حياً وميتاً .**

توسل ناجائز نه ګڼي اقسام ناجائز ګڼي يا الله د فلاني پيغمبر په ذات قسم درکوم چې زما دا مشکل پوره کړه .

او دا حق چې کوم ده که دا حق دې وجوبي کړ هم د اقسام الفاظ دي بيانو دې کې بيا اختلاف دي ځکه اقسام خالق ته په مخلوق مطلقاً ناجائز ګڼي توسل جائز اقسام ناجائز .

ځه علماء د مواليکو نه او زمونږ د احنافو نه قاضي عبد السلام دوي چې کوم دي اقسام په ذات د نبي عليه السلام فقط جائز ګڼي او په بل چا يې ناجائز ګڼي .

حاشية الصاوي على شرح الصغير جلد ۱۱ صفحه ۳۶۰ د خپل کتاب د فراغ ذکر کوي :

وكان الفراغ من تبييضه غرة ربيع الاول ونسأل الله ان يفرج كرب آل بيت نبينا والمؤمنين انه لطيف كريم حليم بجاه جدهم سيد المرسلين عليه افضل الصلوة واتم التسليم .

منح الجليل شرح مختصر الخليل جلد ۱٦ صفحه ۱۱ دعاء كوي :

ونسأل الله تعالى التوفيق للصواب وان يسلك بنا الزلفى وحسن مآب بجاه سيدنا محمد صلى الله عليه وسلم وعلى آله والاصحاب ..

مذكور كتاب جلد ۹ صفحه ۱۴۰ كې بيا ذكر كوي :

اما التوسل ببعض مخلوقاته فجائز واما الاقسام على الله تعالى فخاص به صلى الله عليه وسلم .

حاشية الصاوي على شرح الصغير جلد ۳ صفحه ۴۴٦ مدينه منوره كې د سلام طريقه دربنايي :

ثم يأتي قبالة القبر الشريف ويقول السلام عليك يا سيدي يا رسول الله السلام عليك يا سيدي يا حبيب الله السلام عليك ياسيدي يا اشرف رسل الله السلام عليك يا امام المتقين السلام عليك يا رحمة للعالمين اشهد انك رسول الله بلغت الرسالة و اديت الامانة ونصحت الامة وكشفت الغمة وجليت الظلمة و نطقت بالحكمة صلى الله عليك وعلى آلك واصحابك اجمعين ثم يتوسل به في جميع مطلوباته .

ثم ينتقل قبالة قبر أبي بكر رضي الله عنه ويقول السلام عليك يا خليفة رسول الله السلام عليك يا صديق رسول الله أشهد انك جاهدت في الله حق جهاده جزاك الله عن امة محمد خيرا رضى الله عنك وارضاك وجعل الجنة متقلبك ومثواك ورضي الله عن كل الصحابة أجمعين ثم يتوسل به إلى رسول الله صلى الله عليه وسلم .

بيا به ابوبكر صديق رضي الله عنه وسيله كړي رسول الله صلى الله عليه وسلم ته .

حاشية العدوي على شرح كفاية الطالب الرباني جلد ۱ صفحه ۱۲ ذكر كوي :

قوله بمحمد وآله . ددې شرحه كوي :

وآله ظاهره ولو عصاة.
په آل د نبي عليه السلام کې شمارل کيږي اګر که ګنهګار وي.
ولامانع من التوسل بآله ولو عصاتاً لانهم بضعةٌ منه لان المراد بهم اقاربه من بني هاشم.
همدغه کتاب جلد ۸ صفحه ۳۲۷ خپله دعاء کوي:
والله سبحانه وتعالى المسؤل ان يوفقنا للاقبال على امتثال مأموراته والاحتجام عن ارتكاب محظوراته ويلهمنا ما يقرب من اجره وثوابه ويباعدنا من سخطه وعقابه بمحمد وآله وصحبه وصلى الله على سيدنا محمد النبي الامي وعلى آله واصحابه وسلم.
دارنګې مواهب الجليل شرح د مختصر شيخ خليل جلد ۹ صفحه ۱۸۰ دې کې دا مسئله ذکر کوي چې:
ان يقسم على الله ببعض مخلوقاته.
نو وايي دا:
فان القسم بها تعظيم لها نحو قولک.
دا قول چې:
بحق محمد يغفر لنا ونحوه.
دا څنګه دي.
نو په اقسام کې بعضې علماو توقف کړي دي او بعضې علماو جواز ورکړې دي.
دارنګې ددغه کتاب جلد ۹ صفحه ۱۸۳ کې استسقاء ذکر کوي:
في أسئلة عز الدين بن عبد السلام هغه مخکې چې ذکر شو دا هغه عبد السلام نه دي.
هل يقسم على الله في دعائه بمعظم من خلقه كالنبي والولي والملك او يكره.
قسم على الله په دعاء کې بمعظم خلقه څنګه دي لکه نبي ولي ملک أويکره اويا مکروه دي.
فاجاب. جواب يې ورکړې.

في بعض الاحاديث انه عَلَيْهِ السَّلَامُ علم الناس الدعاء فقال: اللهم اني اقسم عليك بنبيك محمد نبي الرحمة فان صح هذا فيلبغي ان يكون مقصورا عليه صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

نو دا اقسام تر هغه پورې خاص شو بل چا باندې نه شي کيدی.

بيا وروسته وايي:

قلت وهذا كله توسل وهو.

عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وغيره چې نيولي دا توسلات دي.

غير القسم والقسم ان يقول اقسمت عليك بنبيك محمد صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او عليك بنبيك او اقسم عليك به كما في الحديث الذي ذكره اما التوسل فظاهر أنه جائز.

## المبحث الثامن: تحقيق الوسيلة بأقوال الفقهاء الحنابلة:

الفروع لابن مفلح حنبلي جلد ۳ صفحه ۱۵۲ کې تصريح کوي:

ويجوز التوسل بصالح. جائز دي توسل په نيک سړي باندې.

وقيل يستحب. چا ويلي مستحب دي.

د امام احمد رَحِمَهُ اللَّهُ قول پيش کوي:

قال أحمد في منسكه الذي كتبه للمروذي انه يتوسل بالنبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ في دعائه وجزم به في المستوعب وغيره.

دا رنګې الانصاف جلد ۴ صفحه ۱۷۸:

ويجوز التوسل برجل الصالح على الصحيح من المذهب.

خپل مذهب حنبلي يادوي صحيح د مذهب حنبلي نه دا ده چې توسل په نيک سړي جائز دي.

قيل يستحب قال الامام احمد في منسكه الذي كتبه للمروذي يتوسل بالنبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ في دعائه وجزم به في المستوعب وغيره.

وهو من الوسيلة المأمور بها في قوله تعالى اتقوا الله وابتغوا اليه الوسيلة.

دارنګې کشاف القناع عن متن الاقناع جلد ۴ صفحه ۲۴۹ :

لا بأس بالتوسل في الاستسقاء بالشيوخ والعلماء المتقين وقال في المذهب .

زمونږ مذهب حنبلي دادی :

يجوز ان يستشفع الى الله برجل صالح قيل يستحب قال احمد في منسكه الذي كتبه للمروذي انه يتوسل بالنبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ في دعائه وجزم به في المستوعب وغيره .

دارنګې مطالب اولی النهی في شرح غاية المنتهى جلد ۴ صفحه ۲۴۹ :

وكذا ابيح التوسل بصالحين على الصحيح من المذهب قاله في الانصاف وقيل يسن قال الامام احمد في منسكه الذي كتبه للمروذي انه يتوسل بالنبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ في دعائه .

دارنګې المبدع شرح المقنع جلد ۲ صفحه ۴۱۹ :

قال في المذهب ويجوز ان يستشفع الى الله برجل صالح قيل يستحب قال احمد في منسكه الذي كتبه للمروذي يتوسل بالنبي في دعائه .

دارنګې الفروع د ابن مفلح ج ۳ صفحه ۱۵۲ :

قال ابراهيم الحربي : الدعاء عند قبر معروف الترياق المجرب .

اوس دا چې ابراهيم حربي څوک دي .

كان ابراهيم الحربي من معاصريه احمد بن حنبل توفى بعده اربعين سنة .

څلويښت کاله وروسته ترې وفات شوی .

كان من جملة المحدثين الثقات بل هو من المجتهدين وذكر في ترجمته انه يشبه بأحمد بن حنبل .

بلکل د احمد بن حنبل نمونه وه په حديثو کې په فقه کې په نورو علومو کې .

# المبحث التاسع : تحقيق الوسيلة عند عامة المصنفين من المفسرين والمحدثين والفقهاء :

دا باب مې دې لپاره لړولي چې د هغه مصنف متعلق تيقن د تمذهب بمذهب نه وي د يو محدث يو مفسر باره کې تيقن نه وي چې دا کوم مذهب نه دي بس عام مفسرين محدثين او فقهاء مې ذکر کړه .

تفسير قرطبي جلد ۸ صفحه ۲۴۰ معروفه داده چې دا مالکي مذهبي ده ځکه د موالکو امامانو نه تعبير کوي په اصحابنا سره .

دعاء کوي :

**فجعلنا اخوانه ان اتقينا الله واقتفينا اثاره حشرنا الله في زمرته ولا حادبنا عن طريقته وملته بحق محمد واله .**

دعاء يې په حق د نبي عليه السلام سره کړې ده .

تفسير روح المعاني جلد ۴ صفحه ۴۷۵ :

**وبعد هذا كله انا لا أرى بأساً في التوسل الى الله تعالى بجاه النبي صلى الله عليه وسلم .**

تحقيق نه بعد زه باک نه ګڼم وسيله خداى تعالى ته په جاه د نبي عليه السلام سره عند الله تعالى .

**حياً وميتاً** . دنيا کې وي که دنيا نه تلې وي .

تفسير روح المعاني جلد ۱ صفحه ۵۷ کې خپله دعاء کوي :

**اللهم اجعلنا سعداء الدارين بحرمة سيد الثقلين صلى الله عليه وسلم .**

ما مخکې درته ويلې وه چې په تفسير روح المعاني کې مو که ردونه په وسيلې پيدا کړه دا به د عثمان آلوسي نه وي خپله محمود آلوسي د وسيلې مخالف نه دي ده په خپله بالفعل وسيله نيولې ده په دعواتو کې .

دارنګې تفسير روح المعاني جلد ۱۰ صفحه ۱۷ کې خپله توسل نيسي :

**نسأل الله تعالى أي يجيرنا منها بحرمة سيد ذوي الالباب صلى الله عليه وسلم .**

دارنګې تفسیر روح المعاني جلد ۱۴ صفحه ۱۵۷:

نسأل الله تعالى ان يمن علينا برضائه ويمنحنا بسوابغ نعمائه والائه بحرمة سيد انبيائه واحب احبائه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وشرف قدره وعظم.

دارنګې تفسیر روح المعاني جلد ۱۷ صفحه ۲۸۱ کې دعاء کوي:

نسأل الله تعالى ان يرقينا الى مقام يرضاه ويرزقنا رضاه يوم لقاه وان يجعلنا من جنده الغالبين وعباده المخلصين بحرمة سيد المرسلين صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

دارنګې بیا محمود آلوسي په جلد ۱۷ صفحه ۴۱۲ کې دعاء کوي:

نسأل الله تعالى ان يوفقنا لفهم كتابه بحرمة سيد انبيائه واحبابه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

دارنګې جلد ۲۱ صفحه ۳۹۵ کې دعاء کوي:

نسأل الله تعالى عظيم مغفرته ورحمته لنا ولوالدينا ولكافة مؤمني بريته بحرمة سيد خليقته وسند اهل صفوته صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وصحبه وشيعته.

دا په حرمة سره دعاء ده او دا توسل دي.

دارنګې تفسیر روح المعاني جلد ۴ صفحه ۱۱۳ ددې آیت په ذیل کې: ولو انهم اذ ظلموا انفسهم، لاندې لیکي:

جاءوك که معنی کوي:

أى على إثر ظلمهم بلا ريث متوسلين بك.

تاته راشي یا رسول الله وسیله نیونکې وي په تا باندې.

دا حوالې محترم شیخ صاحب اکثره د بیروت د چاپ ذکر کوي.

تفسیر حقي روح البیان د اسماعیل حقي رَحِمَهُ اللهُ جلد ۱ صفحه ۱۷۶ کې دعاء کوي:

اللهم لا تنسنا ذكرك واجعلنا من الذين معك في تقلباتهم وفي كل معاملاتهم آمين آمين آمين بجاه النبي الامين.

دارنګې تفسیر البحر المدید في تفسیر القرآن المجید د ابن عجیبه جلد ۷ صفحه ۱۲۷

نسأل الله تعالى سبحانه ان يكسوه جلباب القبول ويبلغ به كل من طالعه او حصله القصد المأمول بجاه سيد الاولين والآخرين سيدنا ومولانا محمد خاتم النبيين وامام المرسلين .

دارنګې تفسير بحر مديد جلد ۲ صفحه ۲۸۱ :

في تفسير قوله تعالى : قالوا يا موسى ادع لنا ربك بما عهد عندك : اى بعهده عندك و هو النبوة او بالذي عهده اليك ان تدعوه به فيجيبك كما اجابك في اياتك والمعنى ادع الله متوسلاً اليه بما عهد عندك من النبوة والجاه او بدعائك اليه ووسائلك .

تفسير سراج المنير د مصنف محمد شربيني الخطيب جلد ۱ صفحه ۵۳۴۹ :

واسأله بخضوع العنق وخشوع البصر ووضع الخد لجلاله الاعظم الاكبر مستشفعاً اليه بنوره الذي هو الثيبة في الاسلام متوسلاً اليه بسيد الانام صلى الله عليه وسلم .

دارنګې تفسير سراج المنير جلد صفحه ۲۶۵۵:

اللهم بجاه محمد صلى الله عليه وسلم ان تجعلنا ووالدينا واحبابنا من اهله .

وقال الشوكاني في تفسيره فتح القدير جلد ۲ صفحه ۱۶۸ :

﴿وَلَوْ أَنَّهُمْ إِذ ظَّلَمُوٓاْ أَنفُسَهُمْ جَآءُوكَ﴾ . د جاؤك معنى كوي :

متوسلين اليك ، دوئ راشي تاته په تا وسيله نيسي .

وقال ابي السعود في تفسيره تفسير ابي السعود جلد ۲ صفحه ۱۰۷:

وَلَوْ أَنَّهُمْ إِذ ظَّلَمُوٓاْ أَنفُسَهُمْ ، وعرضوها لعذاب زائد على عذاب النفاق بترك طاعتك والتحاكم الى غيرك ، جاءوك من غير تاخير كما يفصح عنه تقديم الظرف متوسلين بك .

قال ابن الجوزي في تفسيره زاد المسير في علم التفسير جلد ۳ صفحه ۴۴۷:

فلما آتوه موثقهم اى اعطوه العهد وفيه قولان : احدهما انهم حلفوا له بحق محمد صلى الله عليه وسلم ومنزلته من ربه قاله الضحاك عن ابن عباس .

ابن جوزي او ابن تيميه دا دوه دوه كسان وه ، ابن تيميه يو لمسي دي بل يې نيکه دي

کتابونو کې چې کله ابن تیمیه الجد راشي دا هغه نیکه مراد وي هغه حنبلي دي او ابن تیمیه المجد چې راشي نو خپله دې مراد وي کله ورسره حراني راغلې وي یا ورسره کنیه د تقي الدین راغلې وي دا بیا دې مراد وي هغه نیکه یې هم لوي محدث دي ابن تیمیه الجد د هغه لقب زین الدین دي او دده لقب تقي الدین دي دده خپل نوم احمد حراني دي .

او هر چې ابن جوزي دي دا هم دوه کسه وه یو ابن جوزیه دي د هغه نوم ابن قیم دي دا شاګرد د ابن تیمیه دي او بل ابن جوزي دا مکنا دي په ابو الفرج باندې دا ۹۶ کاله د هغه ابن جوزیه نه متقدم دي او داد ابن تیمیه نه هم مخکې تیر شوې دي خو محدث وه حافظ وه جارح وه دا زیات کتابونه چې تاسو ګوري داد ابن قیم نه دي داد هغه ابن جوزي دي دا معروف، موضوعات چې تاسې پیژنې دا د ابن جوزي دي د ابن جوزیه نه دي کوم چې شاګرد د ابن تیمیه دي .

هغه ابن جوزیه دي ابن قیم هم ورته وایي نو چې کوم ځای کې ابن جوزي راشي دا به هغه مخکنې وي نو دا خپله حنبلي مذهبي دي جارح دي او ډیر تصانیف لري او خپله ابن قیم هم تصانیف لري خو دا زیات شهرت ورته د ابن جوزي کتابونو ورکړې چې خلک یې فرق نه کوي چې ابن جوزي راشي نو خلک وایي دا به دې وي نه دې نه وي .

نو تفسیر زاد المسیر داد ابن جوزي دي ، دې یو عجیب استدلال کوي په سورة یوسف کې چې راځي :

**فلما آتوه موثقهم** . یعقوب عَلَيْهِ السَّلَامُ پسې ځامن راغله چې مونږ ته بن یامین راکړه یعقوب عَلَيْهِ السَّلَامُ ورته وویل نه درکوم تاسو به ورسره هغه معامله وکړي کومه مو چې دده ورور سره کړې وه هلته یوسف عَلَيْهِ السَّلَامُ دوي ته ویلې وه چې هغه ورور مو راته ولې بیا رانه شي دوي پلار مجبور وي چې دا مونږ سره پریږده پلار یې ورته وویل تر څو قسم ونه کړي او کلک عهد ونه کړي زه یې درسره نه پریږدم . نو رب کریم فرمایي :

**فلما آتوه موثقهم** . کله چې ورته دوي هغه قسم میثاق او عهد پیش کړ دې ځامنو راوړاندې کړ یعقوب عَلَيْهِ السَّلَامُ ته میثاق خپل دا میثاق څه شي وه په څه شي باندې یې د یعقوب عَلَيْهِ السَّلَامُ عقیده جوړه کړه چې دا بچي مونږ درته راولو بیرته او هغه پرې یقین وکړ .

**اعطوه العهد** . عهد یې ورکړ .

فيه قولان. په دې کې دوه قوله دي: يو قول دادی:

انهم حلفوا له بحق محمد صلى الله عليه وسلم ومنزلته من ربه قاله الضحاك عن ابن عباس رضي الله عنه.

د ابن عباس رضي الله عنه د ضحاک روایت دادی چې دا میثاق وسیله وه دوي ورته ویلې چې خاطر د محمد مصطفی صلى الله عليه وسلم درته پیش کوو چې دا مونږ سره پریږده.

حلفوا له بحق محمد صلى الله عليه وسلم.

د نبي عليه السلام په حق درته قسم خورو چې دا به درته راولو نو بیا یې ورسره پریخود.

دارنګې تفسیر النیسابوري جلد ٦ صفحه ۱۳۰ کې دعاء کوي:

اللهم اجعلنا من العارفين واكشف عنا غطائنا بحق محمد صلى الله عليه وسلم وآله.

دا توسل بالفعل شو.

دارنګې تفسیر الثعالبي چې الکشف والبیان ورته ویلې شي جلد ۷ صفحه ۲۰۴ دې ترجمه کوي:

قال لهم يعقوب لن ارسله معكم حتى تؤتون تعطوني موثقاً من الله يعني تحلفوا لي بحق محمد خاتم النبيين وسيد المرسلين ان لا تغدروا باخيكم.

په حق د محمد صلى الله عليه وسلم به قسم کوي راته چې تاسو به خیانت نه کوي.

بیا جلد ۷ صفحه ۲۰۵ د تفسیر الثعالبي کې:

فلما آتوه موثقهم.

ددې ترجمه کوي:

اعطوه عهودهم وقال جويبر عن الضحاك عن ابن عباس رضي الله عنه حلفوا له بحق محمد صلى الله عليه وسلم ومنزلته من ربه.

داد مفسرينو اقوال شول.

# المبحث العاشر: أقوال عامة المحدثين:

(١) قال الحافظ بدر الدين العيني في شرحه عمدة القاري شرح صحيح البخاري جلد ١ صفحه ٢٧ په ابتداء کې ذکر کوي:

فها نحن نشرع في المقصود بعون الملك المعبود ونسأله الاعانة على الاختتام متوسلاً بالنبي خير الانام صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وآله وصحبه الكرام.

وايي سوال ترې کوم په اعانت د اختتام باندې په حال کون زما کې زه وسیله نیوونکې یم بالنبي خير الانام وآله وصحبه الكرام.

(٢) قال العلامة المحدث الشيخ عبد الحي اللكهنوي في التعليق الممجد على موطأ محمد جلد ١ صفحه ٢٥ کې دعاء کوي:

اللهم كما منحت على عبادك بفضله ولطفه فامنن عليه بعلو درجة في الدنيا والآخرة واحفظه بحفاظتك من بليات الدنيا والآخرة بحرمة نبيك سيد الانبياء وآله.

دا توسل بالحرمة.

(٣) دا رنګې سُلوَةُ الكئيب بوفاة الحبيب جلد ١ صفحه ٣٧ کې توسل نيسي:

متوسلاً بمن الفت فيه صلوات الله وسلامه عليه الى الله تعالى ان يغفر ذنوبه ويستر في الدارين عيوبه فقير عفو الله تعالى عبد الرحمن بن محمد ابن احمد الفرفور الحنفي تاب الله عليه وعلى سائر عصاة المسلمين بحرمة سيد المرسلين صلواة الله وسلامه عليه وعليهم اجمعين.

(٤) دا رنګې سلك الدرر في اعيان القرن الثاني عشر جلد ١ صفحه ٦٦:

والتوفيق بأرائها وحركاتها معقوداً بحرمة سيد المرسلين صلى الله تعالى عليه وعلى آله وصحبه اجمعين.

بیا د غه کتاب جلد ٢ صفحه ٢٣٢ کې دعاء کوي:

بلغه من كل خير مطلوبه هو مراد بحرمة سيد المرسلين وآله الطاهرين وصحبه الاكرمين

صلى الله تعالى وسلم عليه وعليهم اجمعين .

(۵) قال الخفاجي في ريحانة الالبا وزهرة الحياة الدنيا جلد ۱ صفحه ۴ كې دعاء كوي :

اللهم بحرمة سيد الانام كما يسرت الابتداء يسر الاختتام صارفاً عنه سوء القضا ناظراً اليها بعين الرضاء .

(٦) دارنګې عجائب الاثار في التراجم والاخبار جلد ۱ صفحه ۹ دعاء كوي :

اللهم بحرمة سيد الانام يسر لنا حسن الختام واصرف عنا سوء القضاء وانظر لنا بعين الرضاء وهذا اوان انشقاق كمائم طلع الشماريخ عن زهر مجمل التاريخ .

(۷) دارنګې حلية البشر في تاريخ القرن الثالث عشر جلد ۱ صفحه ۳۴٦ كې دعاء كوي :

والاجر الجزيل بحرمة سيد الانام الذي يحسن بذكره البدء والختام .

(۸) دارنګې تخريج احاديث الاحياء حافظ عراقي جلد ۲ صفحه ۳۰۴ دي هم دعاء كوي :

يا خير من دعاه داع وافضل من رجاه راج بحرمة الاسلام وبذمة محمد عَلَيْهِ السَّلَامُ اتوسل اليك فاغفر لي جميع ذنوبي .

(۹) دارنګې النور السافر عن اخبار القرن العاشر جلد ۱ صفحه ۱۷ كې شعر وايي :

أسأل الرحمن لي من فضله العفو والغفران والرزق الرغد

رب جنبنا بجاه المصطفى كل كد وبلاء ونكد

نو بجاه المصطفى دعاء ده وركې .

دارنګې اضوء اللامع د علامه سخاوي جلد ۲ صفحه ۲۸۲ :

بجاه عريض الجاه والعالي الشان محمد المختار من آل عدنان .

دارنګې اضوء اللامع د علامه سخاوي جلد ۴ صفحه ۳۳۸ :

بجاه النبي المصطفى أتوسل الى الله في ما ابتغي وأؤمل

واقصد باب الهاشمي محمد وفي كل حاجات عليه اعول

اقول حبيبي يا محمد سيدي ملاذي عياذي من به أتوسل

عسى نفحة يا سيد الخلق اهتدي بها من ضلالي انني متعطل.

دارنكې خلاصة الاثر في عيان القرن الحادي عشر جلد ١ صفحه ٩٤ ليكي :

بجاه رسول الله افضل مرسل ترى الأسد في الغابات من خوفه صرعى

عليه صلوات الله ثم السلام واصحابه والال اجمعهم جمعاً.

دارنكې طبقات السنية في تراجم الحنفية جلد ١ صفحه ٢٠٧ :

ويارب فاحرسه بجاه محمد وأيده بالمأمون من حادث الدهر.

دارنكې ازهار الرياض في اخبار القاضي عياض جلد ١ صفحه ١٨٨ دعاء كوي :

نسأل الله بجاه هذا النبي الشرف القدر العظيم المزية ان يعتقنا من النار ويجيرنا في الدنيا والآخرة.

دارنكې النجوم الظاهرة في ملوك مصر والقاهرة جلد ٤ صفحه ٤٢٢ :

فالله بجاه سيد عدنان عوض لنا منك بإحسان

دارنكې تاريخ الخلفاء د سيوطي رَحِمَهُ اللَّهُ جلد ١ صفحه ٢٢٠ :

كانت فتنة تمرلنك التي استصغرت بالنسبة اليها فتنة التتار على عظمها واسأل الله تعالى ان يقبضنا الى رحمته قبل وقوع فتنة المائة التاسعة بجاه محمد صلى الله عليه وآله وصحبه اجمعين آمين.

دارنكې تاريخ ابن خلدون جلد ٢ صفحه ١٩٠ دعاء كوي :

اللهم انا نسألك يا اكرم مسئول ونتوسل اليك بأعظم نبي واكرم الرسول.

دارنكې فهرس الفهارس للكتاني جلد ٢ صفحه ١١٧٢ :

فجزى الله مؤالفه على هذا الصنع الجميل احسن الجزاء وادام النفع به وحفظه من الاسواء

بجاه من هو للأنبياء ختام عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ .

دارنګې ابجد العلوم د قنوجي جلد ۳ صفحه ۲۸۰ :

صانها الله وإيانا عن كل رزية و بلية بجاه نبيه المصطفى خير البرية .

دارنګې طبقات الشافعي الكبرى جلد ۳ صفحه ۲۴۳ :

وله الشفاعة والوسيلة والفضيلة وللواء وكوثر الزمان فأسئل الهك بالنبي محمد متوسلاً تظفر بكل آمان .

درانګې عقد الجمان في تاريخ اهل الزمان جلد ۱ صفحه ۲۰۸ دعاء کوي :

فنسئل الله العظيم متوسلين بنبيه الكريم ان يحرسنا من شر كل ذي شر وحسد و من عداواة كل ذي حقد ونكد وان يجعلهم مشغولين بأنفسهم حتى لا يشتغلون بألحظ علينا وببلوغ المنكدات الينا انه على ذلك قدير وبدفعهم عنا هو القادر الجدير .

سوال کوم د خالق نه وسیله نیو ونکې يو په نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره چې وساتي مونږ د شر د هر ذي شر او حسد نه د عداوت د هر يوه کينه ګرو حسد ګر او وګرځوي باري تعالی دا حسد ګر مشغولين په خپلو ځانونو باندې نه چې مشغول شي په ظلم په مونږ او ددوي تکاليف مونږ ته راورسي دې نه دې الله مونږ وساتي خالق په دې قادر دي وبدفعهم عنا هو القادر الجدير .

دا چند مباحثو باندې مسئله د توسل مشتمله وه نصوص د قرآن کريم بيا احاديث سره د مفسرينو محدثينو صحابه کرامو او فقهاء اربعه مذاهب نه اقوال .

داسې څوک نشته چې مؤرخ وي يا محدث وي يا دې فقيه مفسر وي او هغه دې بالفعل توسل نه وي نيولې بغير له ابن تيميه نه او چند تلاميذ د هغه او ددې زمانې د اهلسنت والجماعة مخالفين چې څو مره دي .

دا خو نصوص د شريعت وه دا کومې حوالې چې د کتابونو متعدده تاسې ته ما درکړې بايد په دې اکتفاء او اعتماد وشي او د چا قول پسې ذهاب ونه شي او هسې د معقول په لحاظ سره چې سوچ وکړو دا قياس د خالق په مخلوق صحيح هم نه دې خو قياس د معقولاتو

په محسوساتو د توضيح د معقولاتو د پاره وي .رب ذو الجلال مونږ په قدرتو پيژند و ذات يې چا مشاهده کړې نه دي مونږ. که وګورو دنيا کې بادشاهان چې مونږ ګورو يو شخص د بادشاه نه مطالبه د مطلوب کوي په توسل کې ذات پيش کوي ورته .

او دويم سړي مطالبه د مطلوب کوي او په توسل کې عمل پيش کوي تاسو اوس سوچ وکړي چې بادشاه د چا کار به پوره کوي يو څوک د وخت بادشاه ته لاړ شي او دې د هغه فوج کې يو فوجي وي يا د هغه په ملک کې د يو دفتر ملازم يا عام سرکاري نوکري يو عمل والا يې او لاړ شي د بادشاه مخکې ودريږي څه ترې غواړي نو بادشاه به ورته وايي ته څوک يې دې به ورته خپل عمل پيش کوي چې ما ستا دا کار کړي د هغې خاطر وکړه ما ته څه راکړه .

او دا بل کس راځي هغه دې بادشاه ته وزير پيش کوي خپله يې هيڅ عمل ورته نه دي کړي ذي قرب والا انسان ورته پيش کوي چې زه دده رشته داريم دده وزير خاطر وکړه زما دغه مشکل پوره کړه .نو اوس تاسو سوچ وکړي په عرف کې بادشاه به دده عام مزدور کار ډير لحاظ ساتي او که د هغه وزير د اقرباوو به ډير خيال ساتي ؟ضرور د هغه ذات سره چې د چا قرب دي او ذات يې پيش کړې دي بادشاه د هغه لحاظ ډير کوي .

دا څومره اعمال چې مونږ کوو داد خدای تعالی په دين کې مزدوري ده مونږ ته پرې اُجرت راکوي ثوابونه راکوي هغه چې عمل کې پيش کوي جائز دي او ذات چې انبياء عليهم السلام او صلحاء دي هغه قرب مع الله لري د هغوي ذات پيش کول ناروا نه دي بلکې خدای تعالی ورکړه په توسل د ذات کې د توسل د عمل نه زياته کوي .

او بله خبره دا چې يو سړي دا خپل عمل پيش کوي توسل پرې ولې جائز دي ځکه جائز دي چې دده دا يقين دي چې زما دا مونځ او عبادت خالق سره وجاهت لري قدر لري نو زه هغه څيز ورته پيش کوم چې کوم شي چې د خالق په درګاه کې قدرمن وي وجاهت او جاه ولري .

نو دا عمل هلته جاه او شان لري هغه پيش کوي اوس چې ذات نه پيش کوي ستا به دا عقيده وي چې زما دوه رکعته لمونځ وجاهت او قدر لري او ذات د محمد مصطفی صلى الله عليه وسلم د خالق په درګاه کې جاه نه لري نعوذ بالله

نو داد کوم چا عقيده شوه چې خپل دوه رکعته لمونځ د خالق درګاه کې اشرف ګڼي د ذات د محمد مصطفی صلى الله عليه وسلم نه توسل بالعمل خو دوي هم جائز ګڼي کنه ولې جائز

کښي وايي دا زمونږ عمل هلته جاه لري نو ځکه يې پيش کوو نو ستا کمزوري عمل چې هلته جاه او قدر لري نو ذات د محمد مصطفی صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يې ولې نه لري .

کان وجيهاً عند الله ، کان وجيهاً في الدنيا والآخرة .

د حضرت عيسى او موسى عَلَيْهِمَا السَّلَامُ حال دي نو وجاهت دوي هلته شته دي نو هغه جاه ددوي خالق ته پيش کول او ستا د خپل عمل جاه هلته منل چې کوم څوک د ذواتو جاه نه مني او په هغې وسيله نه مني به الفاظ ديگر دې د خپلو اعمالو وجاهت مني خو د انبياء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ او د اولياء په درګاه الهي کې وجاهت او شان نه مني که يې منلې نو ځکه هغه نه پيش کوي چې دا پيش کوي .او زما خو دا عقيده ده چې زما دا ټول اعمال راواخلي په مقابله د ذات محمد مصطفى صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کې د درياب د څاڅکې وجاهت هم نه لري ځکه زمونږ خو ټول اعمال چې وجاهت پيدا کړ او درجه د قبول ته ورسيده نو ذات د محمد صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې نه وي نه به رسيدل نو ټولو اعمالو زمونږ ته ښائست د محمد مصطفى صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ له وجهې ورکړل شو که مونځ ده که روژه ده دا او داسې نور اعمال .

اوس که يو څوک فرضي لمونځ کوي او د محمد مصطفى صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سنتونه يې اخوا کړي نو د فرضي مونځ دانچه جوړول امکان نه لري نه شي جوړيدې بغير له سنتو نه د فرض مونځ دانچه نه جوړېږي الله اکبر به ووايي سبحانك اللهم سنت دي دا ترې لرې کړه بيا اعوذ بالله بسم الله سنت دي دا ترې لرې کړه رکوع ته ځي الله اکبر سنت دي دا ترې لرې کړه سبحان ربي العظيم تثليث سنت دي دا ترې لرې کړه .

داسې ټول سنت شو نو دانچه د فرض مونځ بغير د سنتو نه ، نه شي جوړيدې نو دا تزين او ښائست له وجهې د سنتو د محمد مصطفى صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دي ځکه دانچه د فرضو نه جوړېږي نو ټولو اعمالو ته ښائست له ذات د محمد مصطفى صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه حاصل دي نو چې په خپلو اعمالو باندې توسل جائز ګڼي وجاهت او جاه يې عندالله ثابتوي نو جاه د ذات محمد صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ځنګه نه مني چې هغه جاه نه لري .

دا مسئله د توسل وه چې متفق وه په نزد د سلفو او خلفو ، ديوبند او بريل ټول متفق دي ددې په جواز باندې .

**مسئله د توسل ختمه شوه**

